


# اوسني طالبان

# که...؟




خلافت غږ البيان راډيو

جمادي الأول - ۱۴۴۰

جنوري - ۲۰۱۹

دلو - ۱۳۹۷



# اوسني طالبان كه...؟

## خلافت غږ البيان راډيو يې وړاندې کوي

# فهرست

# بسم الله الرحمن الرحيم

## سريزه

الحمدلله رب العالمين والصلوة والسلام على رسوله الكريم محمد و على آله و أصحابه أجمعين أمابعد:

د خلافت غږ البيان راډيو خوږو او عزتمندو قدرمنو اوريدونكو!

السلام عليكم ورحمة الله وبركاته

هيله مند يو چې د ژوند تولې شېبې مو د الله تعالى په ياد تېروئ، الله رب العالمين مو د خپل سپېڅلي پاک نظام له خوږو څخه برخمن كړه ترڅو د دنيا او آخرت ګټې مو په برخه شي.

محترمو! نوى بحث مو د نوي عصر امارت او د دوهم نسل طالبانو په اړه دى، چې د الله تعالى رضا لپاره يې بيانوو، ترڅو امارت كې د ننه هغه كسان چې اوس هم په حقيقت ندي پوه شوي، او هغه كسان چې امارت نه بهرددوى خيرخواهي كوي خو له اصليت نه يې خبر ندي، نو پوه شي او الله تعالى يې زړونه د هدايت په نور منور كړي.

له الله تعالى نه دا دعا كوو چې يا الله! زمونږ دا خبرې د ډيرو مسلمانانو د زړونو د رڼاوالي سبب وګرځوې، او د ډيرو د هدايت سبب يې وګرځوې.

او له عامو طالبانو څخه غواړو چې زمونږ خبرې بې له کوم تعصب او طرفدارۍ نه واوري، بلکې په دې نيت يې واوري چې که خبرې مو په قرآن او سنت برابرې او د شريعت موافق وې نو قبلوي به يې.

اى کشرانو عامو طالبانو! مونږ پداسې حال کې دې بحث کې لګيا يو چې د امريکايي صليبي کفارو الوتکې مو په سر ګرځي او د اسلام او مسلمانانو د دولت ختمولو په موخه ددې صف مجاهدين په درنو بمونو بمباردوي، او د دښمنۍ آخري حد کې له هر وحشت څخه کار اخلي، **خو** همدا اوس بيا ستاسو طالبانو مشران په دوحه کې له امريکايانو سره مستقيما د زلمي خليلزاد په مشرۍ د افغانستان د تېر جهاد د مجاهدينو د قربانيو معاملې او تجارت کوي، د تل لپاره خپله اسلحه نوره ورته په ځمکه ږدي، او د بې شمېره نورو تنظيمونو غوندې دوی هم نور د کفارو دوستان جوړېږي، والله المستعان.

په هر صورت محترمو اورېدونکو! لکه څنګه چې رسول الله ﷺ دا پيشنګويي وکړې او فرمايلي يې و: تَكُونُ النُّبُوَّةُ فِيكُم مَاشَاءَاللهُ أَن تكُون ثُمَّ يَرفَعُهَا الله إِذَا شَاءَ الله أَن يَّرفَعَهَا ثُمَّ تُكُونُ خِلاَفَةً عَلَى مِنهَاجِ النُّبُوَّةِ فَتكُونُ مَاشَاءَاللهُ أَن تكُون ثُمَّ يَرفَعُهَا اللهُ إِذَا شَاءَ أَن يَّرفَعَهَا، ثُمَّ تكُونُ مُلكًا عَاضًا فَيَكُونُ مَاشَاءَاللهُ أَن تكُون ثُمَّ يَرفَعُهَا اللهُ إِذَا شَاءَ أَن

يَّرفَعَهَا، ثُمَّ تَكُونُ مُلكًا جَبرِيًّا فَتَكُونُ مَاشَاءَاللّٰهُ أَن تَكُون ثُمَّ يَرفَعُهَا اللّٰهُ إِذَا شَاءَ أَن يَّرفَعَهَا ثُمَّ تَكُونُ خِلَافَةً عَلَى مِنهَاجِ النُّبُوَّة ثُمَّ سَكَتَ. ﴿رواه احمد﴾

ژباړه: نبوت به دنيا کې باقي وي ترهغو چې الله وغواړي، بيا به الله دا نبوت له دنيا نه اوچت کړي، بيا به خلافت په طريقه د نبوت (خلافت راشده) دنيا ته راشي، څومره چې د الله خوښه وه دنيا کې به موجود وي، بيا کله چې الله وغواړي دا خلافت به له دنيا نه اوچت کړي، وروسته به داسې حکومتونه دنيا ته راشي چې په دنيا به چک لګوونکي وي، او څومره چې د الله خوښه وه دنيا کې به موجود وي بيا کله چې الله وغواړي، دا به له دنيا نه اوچت کړي، وروسته له هغه نه به جبري ملکونه دنيا ته راشي، او څومره چې د الله خوښه وه دنيا کې به پاتې شي، بيا چې کله الله وغواړي دابه له دنيا اوچت کړي، وروسته لدې به خلافت په طريقه د نبوت دنيا ته راشي بيا رسول الله ﷺ سکوت وکړ.

نو دا دی الحمدلله اوس وروسته له چک لګوونکي حکمرانانو او لدې جبري حکومتونو نه، اسلامي خلافت قايم شو، او خپلو تمکين ساحاتو کې يې اسلامي نظام نافذ کړ، بې وسه مسلمانان يې د کفارو له پنجو راخلاص کړل، د کفارو په وينو يې ويالې وبهيولې، او هرې خواته ورسره جهادونه روان دي، د استشهاديانو کاروان ددوی جرړې وويستې، د انغماسيانو قافلې

ددوی زړونه مریو ته راوستل، د زمریانو سرتیرو مجاهدینو قربانیو ددوی نه څه جهنم کندې ته واستول، او څه یې د زخمونو او دردونو په سرگردانیو کې مات مات کړل، او څه یې چې باقي دي نو ان شاء الله د همدې انجامونو سره مخامخ کیږي، که چیرته توبه ونه باسي.

مگر بلې خوا د نړۍ ډیرو خلکو ددې سپیڅلي نظام دښمني پیل کړه، او په مختلفو نومونو یې ددې خلافت مقابله شروع کړه، څوک د ډیموکراتیکو حکومتونو په صف کې، څوک د تنظیمونو په صف کې، څوک د حزبونو په صف کې، څوک د...

ددې خلافت چې څومره ولایتونه دي لکه عراق، شام، نایجریا، طرابلس، خراسان، صنعاء، غرب افریقیة، او... نو دا ولایتونه د بې شمیره دښمنانو چې ټول یې مستقیما یا غیرمستقیما د یوه بیرغ (امریکا) لاندې راځي، په دښمنۍ مخ دي.

دې ولایتونو کې یو خراسان ولایت دی، چې فعلا افغانستان او پاکستان کې څه ساحې خپلې ولکې لاندې لري، او خپلو تمکین ساحاتو کې یې همدا سپیڅلی اسلامي نظام حاکم کړی، خو دلته هم لکه نور ولایتونه کفار د مختلفو نومونو او مختلفو رهبریو نامه ددې نظام دښمنۍ ته ولاړ دي، چې ټول یې د یوه کفري بیرغ لاندې راځي، چې همغه امریکا ده.

دا دښمنان بیا ځینې ښکاره د سیکولرزم، ډیموکراسی او لادینیت شعارونه او نعرې پورته کوي، خو ځینې یې بیا خپل هر کار ته د اسلام پوښ ور اغوندي، او خپلې شومې کړنې د اسلام په جامه پټوي، خو اصل کې ټول یې د شرعـي نظـام مخـالفین دي، او د وطنیت او جاهلیت پلویان او داعیان دي.

دې ډلو کې یوه ډله د (**افغانستان امارت**) په نامه د نـوي عصر د طالبانو ډله ده چې د اسلام نعـرې پورتـه کـوي، خـو افسـوس چې د وطنیت، قومیت او حتی د ارتداد په فتنو کې واقع شـوي، مشران یې لګیا دي کـږو او منحرفـو سیاسـتونو بانـدې د خپلـو کشرانو په وینو تجارتونـه کـوي، دوی لګیـا دي د هغـه پخوانیـو سپېڅلیو مجاهـدینو وینـې خرڅـوي، چـې د اسـلامي نظـام پـه آرمان یـې تـویې کـړې وې، دوی هغـه وخـت خـبر نـه ول چـې وروستني راتلونکي رهبران به یې په وینو په مسـکو او دوحـه او دوبۍ کې له امریکایانو سره معاملې ترسره کړي.

مونږ ټولو طالبانو ته په وار وار دا ویـلي چـې ستاسـو وژلـو نـه مونږ ستاسو په هدایت ډېر خوشحاله یو، نـه غـواړو چـې تاسـو سره په جنګ کې ښکېل او کفار رانه پـه آرامـه شي، بلکـې مـونږ پرېږدئ هغوی سره زمونږه ډېره غټه دښـمني ده، هغـه دښـمني ده چې ترهغو مو ټوله نړۍ ددوی له وحشي پنجـو نـه وي آزاده کړې نو په آرامه نه کېنو.

ترهغو مو په ټوله نړۍ د الله نظام نه وي راوستی نو له جهاده لاس نه اخلو، بلکې کله چې د الله امر مونږ ته متوجه وي، مونږ ورته لبیک وایو ان شاء الله.

نو زمونږ ددې بحث هدف حقیقت بیانول او عامو خلکو او طالبانو ته دعوت دی، چې د شریعت په رڼا کې به د اوسني امارت ټول روان حالات وتلو، نو تاسو به وګورئ چې اوسني طالبان نور پخواني طالبان ندي، بلکې د نویو مشرانو لخوا یې منهج منحرف او تګلاره یې بدله شوې ده.

لدې بحثونو زمونږ هدف ټولو مسلمانانو او ټولو طالبانو ته دعوت دی، ځکه داسې ډېر طالبان دي چې حیران پاتې دي وروسته ددوی د صف د قیادت او تګلارې د انحراف نه، او په دې هم پوهېږي چې خامخا امت کې داسې ډله شته چې پرحق جنګېږي ځکه رسول الله ﷺ فرمايي: (لَن يَبرَحَ هَذَاالدِّينُ قَائِمًا يُقَاتِلُ عَلَيهِ عِصَابَةً مِنَ الْمُسلِمِينَ حَتَّى تَقُومُ السَّاعَةُ) [رواه مسلم] ژباړه: دا دين به همیشه لپاره ولاړ وي چه په دې به د مسلمانانو یو ټولۍ جنګ کوي تردې چې قیامت راشي.

نو راځئ! پدې بحث کې به ان شاء الله په دې ټولو موضوعاتو رڼا واچوو، د الله رب العالمین په مدد شروع کوو او له هغه تعالی مرسته او هدایت غواړو.

# د طالبانو تاريخچه

کله چې ۱۴۱۵ هجري (۱۹۹۵ میلادي) کال کې د طالبانو حرکت د افغانستان قندهار ولایت کې څرګند شو، نو یو کال کې د ننه د افغانستان پنځه یا شپږ جنوبي او غربي ولایتونو باندې یې ولکه راغله، د جنګ له لارې یې نورې ډلې وشړلې او د شریعت تطبیق ته یې اقدامات وکړل، تر ۱۴۲۲ هجري (۲۰۰۲ میلادي) کال پورې یې د افغانستان له ۹۵٪ نه زیاتو ساحو باندې ولکه پیدا کړه.

ملا محمد عمر مجاهد په اوایلو کې خپلو ۱۱ ملګرو سره چې د مدرسې طالبان ول، د سنج حصار منطقې ته لاړل او هلته یې له ډاکوانو (غلو) سره مبارزه کوله، ځینې یې ووژل او ځینې یې اسیران کړل، وروسته کمیونیستې ډاکوانو د قندهار - پاکستان مرزونو کې د بلوچستان منطقه کې دې طالبانو سره د جنګ پلانونه نیول، طالبانو هم په هغوی حمله وکړه، ډاکوانو شکست وخوړ او پاکستان ته وتښتېدل نو طالبانو ډېر غنیمتونه او اسلحې لاس ته راوړې.

وروسته له هغه ملا محمد عمر او ملګري یې د قندهار والي ته لاړل او له هغه یې وغوښتل چې د ناتوانی له وجې د قندهار امارت او قدرت دوی ته په لاس ورکړي ترهغو چې د شریعت

تطبيق پکې وکړي، والي خودداري وکړه، په نتيجه کې والي سره وجنګېدل هغه يې خلع کړ نو د قندهار په امارت يې واک ترلاسه کړ، او د شريعت اعلان يې وکړ.

وروسته د رباني يو غټ رهبر د خپلو افرادو او تجهيزاتو سره ملاعمر سره يوځاى شو، هغوی سره يې نصرت وکړ او قدرت يې ورزيات کړ.

طالبانو لږ لږ قاضيان او واليان او افراد مختلفو سيمو ته په قندهار کې ولېږل او دارنګه ملا محمد عمر مجاهد رسمي توګه باندې د طالبانو امير مقرر شو.

وروسته لدې د جوزجان ولايت چې د قندهار ترڅنګ و، او د هلمند ولايت سلطه او قدرت يې ملاعمر ته په لاس ورکړ ترهغو شريعت پکې حاکم کړي، بيا د زابل ولايت هم همدارنګ مخې ته راغلل او طالبانو په پنځه جنوب غربي ولايتونو واک ترلاسه کړ. وروسته يې مخه غزني ولايت په طرف کړله چې هلته د حکمتيار حکومت و، او حکمتيار د طالبانو سره د جنګ کولو دستور ورکړ مګر د لږې نښتې په نتيجه کې د حکمتيار فوج وتښتېده او غزني ولايت هم د طالبانو ولکې لاندې راغی. او پدې اتفاق کې رباني د حکمتيار په ماتې خوشحاله و، او يوه ډله يې طالبانو ته د مبارکۍ په خاطر ولېږله.

بیا طالبانو خپل قوت راجمع کړ او د کابل د فتحې قصد یې وکړ، او پدې لاره کې د پکتیا ولایت د شیخ حقاني په رهبرۍ د یوې صلحې په ترڅ کې طالبانو سره یوځای شو.

طالبانو د هغه وخت د ډلو له مشرانو لکه رباني، مسعود، حکمتیار او سیاف نه وغوښتل چې شریعت تطبیق کړي. کمونېستان له خپلو صفونو څخه وباسي او د اختلاط و فجور و اختلاف مخه ونیسي.

حکمتیار طالبانو سره د جنګ اعلان وکړ او د هغوی ترمنځ ځیني نښتې وشوې چې په نتیجه کې د حکمتیار ډلې تېښته وکړه او ځیني رهبران یې طالبانو سره یوځای شول او د حکمتیار مهمې قلعې په (میدان شهر، شهرآسیاب او لوګر) کې سقوط سره مخ شوې.

رباني هم د حکمتیار له ماتې نه په وېرې د جګړې پرځای تسلیم شو او طالبانو نه یې وغوښتل چې خپلې غوښتنې مطرح کړي.

طالبانو له رباني وغوښتل چې کمونېستان له منصبونو، وزارتونو او حساسو مسئولیتونو نه لرې کړي، تردې چې د رباني جنګي

قومندان یو غټ کمونیست جنرال و، او داخلي وزیر یې د رافضي وحدت یو رهبر و.

دوهمه غوښتنه د طالبانو دا وه چې ټولې ښځې به له دولتي ادارو نه وباسي چې د اختلاط مخنیوی وشي، خاصتا چې ډیرې ښځې د ماسکو پوهنتون نه فارغې وې، او کمونیستې وې.

دریمه غوښتنه د طالبانو له رباني نه دا وه چې ښکاره اعلان د شریعت به کوي او تبرج، غناء، موسیقي، منکرات، سینما، مخدرات او شرابخانې به بندوي.

څلورمه غوښتنه دا وه چې د هندوستان او ایران دخالت دې د افغانستان په حکومت کې بندوي، خو رباني ددې غوښتنو له منلو ډډه وکړه.

وروسته لدې د یونس خالص حزب، د انقلاب اسلامي حزب، شیخ حقاني او سلګونه علماء او طلباء؛ طالبانو سره یوځای شول، او دارنګه د سیاف او حکمتیار ډیري رهبران هم طالبانو سره یوځای شول.

بالاخره طالبانو په ۱۴۱۷ / ٥ / ۱۴ هجري (۱۹۹٦ / ۹ / ۲٦ م) تاریخ کې په کابل حمله وکړه او کابل په لنډ وخت کې سقوط وکړ او لا سهار نه و شوی چې طالبان کابل ته د ننه شول نو د

رباني، مسعود او حکمتيار جنګيالي وتښتېدل، پدې رنګه طالبانو په شرقي، جنوبي، غربي او شمال غربي ولايتونو تر هراته پورې واک ترلاسه کړ.

وروسته له څو مياشتو له ۱۴۱۷ طالبانو په مزار چې د افغانستان په شمال کې دی حمله وکړه، هغه ځای يې هم فتح کړ، بيا باميان ته چې د شيعه ګانو مرکز دی لاړل، او هغه ځای يې هم فتح کړ، پدې ترتيب يو ولايت بل پسې فتح کېده او فتوحات همداسې جاري ول، تردې چې صليبي جنګ د امريکا په رهبرۍ د افغانستان پرضد پيل شو، او دا ۱۴۲۲ / ۷ / ۲۴ کال و، طالبانو له شيخ اسامه بن لادن رحمه الله او نور عربانو سره ملاقات وکړ چې جلال آباد کې ول، او همدې ځای نه ددوی ترمنځ دوستۍ او روابط راڅرګند شول.

چې بيا وروسته ملا محمد عمر مجاهد په شيخ اسامه بن لادن داسې غيرت وکړ، چې د ټولې نړۍ کفار ورته حيران ول، کفارو ډېر کوښښ وکړ چې اسامه رحمه الله ورته وسپاري، خو ملا محمد عمر مجاهد انکار وکړ، او تر آخره يې کفارو سره جهاد ته ادامه ورکړه.

# د ملا محمد عمر مجاهد وفات

د ملا محمد عمر د وفات يا وژل کېدلو مسئله هغه خبره ده چې د پخواني امارت او اوسني امارت د بدلون اساسي کرښه بلل کېږي.

کله چې امارت په افغانستان کې سقوط سره مخ شو نو هغه نه وروسته ملا محمد عمر مجاهد هم له ښکاره صحنې څخه ورک شو، کلونه کلونه پرلپسې دده په نوم مختلفو اشخاصو او کړيو کارونه کول خو کشران بې خبر او نړۍ ناخبره وه.

پدې دوران کې کوم چې مخلص مجاهدين ول نو سوچ او فکر اخستي ول، چې دا څه روان دي امارت ولې ورځ تربلې منفي تګلارې په لور روان دی، خو عام خلک پدې بدلونونو ډېر نه پوهېدل.

کلونه کلونه همداسې تېر شول خو د مشرتابه کارونه د عامو خلکو له نظره پټ ترسره کېدل، کشرانو طالبانو ته هغه څه ښکاره کېدل چې د مشرتابه د رازونو په تاوان نه ول.

امارت ته منسوبې ځيني ډلې او مشران پدې شکمن ول چې داسې ډېر کارونه د صحنې شا ته روان دي، چې پټ پاتې کېږي او عام منظر ته نه راوځي.

چې د مثال په ډول د ازبکستان اسلامي حرکت مشر ـ شیخ عثمان غازي دی، هغه د ملامحمدعمر د نشتون په اړه فارسي ژبه کې بیان نشر کړ، چې دې بیان کې د ملامحمدعمر ۱۳ کاله ورَکېدل او دده په نوم کارونه ترسره کېدل پکې واضحه شوي، نو د نوموړي بیان دلته رانقلوو:

### د عثمان غازي د ازبکستان اسلامي حرکت امیر پیغام:

بسم الله الرحمن الرحیم

هغه ذات لره ستاینې دي چې مونږ ته یې امر کړی هرحالت کې حقیقت بیان کړو، او درود دې وي په هغه رسول چې مونږ ته یې تعلیم راکړ چې له صادقینو څخه واوسو.

السلام علیکم مسلمانانو ورونو او هغه مجاهدینو چې ټول عالم کې یې د کفر و شرک پرضد جهاد کوي!

الحمدلله، نن ټول عالم کې مسلمانان د خپلې عقیدې پربناء د ویښېدلو په حال کې دي، او هغه د ذلت طوق چې له قرنونو نه یې په غاړو کې پروت ؤ، مات کړ. او مونږ هره ورځ د ماوراءالنهر، خراسان، جزیرة العرب، عراق و شام، مصر او نورو ځمکو کې د خوشحالیو شاهدان یو.

او دارنگه مسلمانان په شمالي افريقا، ققفاز، سوماليا، مـالي او بلقـان کـې د وينښيدلو په حال کې دي، حتى په دوه قـارو (اروپـا، امريکـا) کـې هـم د خوزښتونو شاهدان يو.

د اسـلامي خلافـت اعـلان د عـراق او شـام مجاهـدينو لخـوا او د ابـوبکر البغدادي ټاکل د خليفه په توگه مونږ ته ډېره ښادي او خوشحالي راکړه.

د الله تعالى په کمک اوس وتوانېدو چې يو مهم حقيقـت امـت تـه بيـان کړو، هغه حقيقت چې ډېرو مسلمانانو تر ننه ندی بيان کړی، که واضـح ووايو، د ازبکستان اسلامي حرکت پدې وروستيو کې پدې خبره ندی پوه شوی بلکې له ډېر وخت نه پدې حقيقت پوه و، ليکن انتظار وو چـې دا حقيقت ددې د اهل له خولې واورو.

ليکن په خواشينۍ سره هېڅ چا دا تريخ حقيقت امت ته بيان نکـړ، پـه همدې اساس نن مونږ پرېکړه وکړه چې دا لوی حقيقت مسلمان امت تـه بيان کړو.

څکه حکيم ذات خپل کلام کې مؤمنانو ته داسې امر کړی:

يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا ٱتَّقُوا ٱللَّهَ وَقُولُوا قَوْلًا سَدِيدًا * يُصْلِحْ لَكُمْ أَعْمَٰلَكُمْ وَيَغْفِرْ لَكُمْ ذُنُوبَكُمْ ۗ وَمَن يُطِعِ ٱللَّهَ وَرَسُولَهُۥ فَقَدْ فَازَ فَوْزًا عَظِيمًا [سُورَةُ الاحزَاب:٧٠-٧١]

ژباړه: ای مومنانو ! د الله څخه ووېرېږئ او سمه خبره کوئ * الله به ستاسي عملونه سم کړي او ستاسي له گناهونو څخه به در تېر شي. هر څوك چې د الله او د هغه د رسول اطاعت وکړي، هغه لوی بریالیتوب ترلاسه کړ.

هغه حقیقت چې اسلامي امت ته ډېر مهم دی، د امیرالمؤمنین ملا محمد عمر د اوسني حالت نه عبارت دی.

که وغواړو د اسلامي شریعت موافق ژوند وکړو، نو باید له دروغ نه ځان وساتو، ځکه دا د الهي شریعت مخالف دی، اوس کم له کمه ۱۳ کاله کېږي چې د افغانستان اسلامي امارت سقوط کړی، له همغه وخته تراوسه د الله په فضل د ازبکستان اسلامي حرکت د افغانستان په ډېرو ولایتونو کې د صلیبیانو او مرتدینو پرضد د جهاد فریضه اداء کړې، چې ددې عملیاتو ابتداء د قلعه ی جنگي او شاهي کوت څخه ؤ.

هغه بچي چې د امارت په وخت کې ماشومان ول، اوس د وخت په تېرېدو سره ځوانان شوي او غیرت و شهامت سره د جهاد په میدانونو کې مشغول دي، او د خپل مشر استاد محمد طاهر فاروق رحمه الله په نقش قدم روان دي، له الله تعالی نه استدعا لرو چې له مجاهدینو څخه راضي شي او زمونږ ټولې قربانۍ په هرحالت کې قبولې کړي.

مونږ ډېر خواشیني یو چې د ۱۳ کالو په بهیر کې مو ونشو کولای چې خپل محبوب امیر ملا محمد عمر مجاهد پیدا کړو، هغه رهبر چې د خپل حکومت او امارت په قربانولو سره یې د اسلام محافظت وکړ او ویې ویلې: "هېڅوخت یو مسلمان کفارو ته نسپارم"، ددې اوږد مدت په بهیر کې خپل ټول واک او قدرت سره مو دده په لټون کې هلې ځلې وکړې، خو هر وار مو امید په ناامیدۍ بدل شوی دی.

دارنګه ځینیو کسانو مونږ ته ویلې: "ملاصاحب ژوند دی"، دوی هم ددې ادعاء په اړه ښکاره دلیل نه درلود، هغه کسانو چې پدې اړه معلومات درلود نو امت نه یې پټ کړی، تراوسه دوی ډېرې مبارکۍ او فرمانونه دده(ملاعمر) په نامه امت ته وړاندې کړي دي.

پدې ټول مدت کې دوه نامو نه بغیر چې په کمپیوټر سره لیکل شوې وې، د ملاعمر له امضاء نه خالي وې، ټولې د ماوراء النهر مجاهدینو ته ندي رسیدلي.

پداسې حال کې چې امیرالمؤمنین د ماوراء النهر مجاهدینو ته ډېر احترام درلود او ډېر محبت یې ورسره ؤ. اګرکه مونږ سره داسې شواهد شته چې امیرالمؤمنین د امارت په سقوط سره ورک شوی دی.

پدې اوږدو کلونو کې مونږ او نور جهادي جماعتونو ډېر کوشش کړی چې دی پیدا کړو خو نه یو توانېدلي. او عجیبه نده چې ساده مسلمانانو د هغه د وضعیت په اړه په فکر کولو توقف کړی دی. تنها مونږ نه یو چې وایو ملاعمر مو ندی لیدلی بلکې داسې کس مو ندی لیدلی چې ووایي: "ما پخپلو سترګو ملاعمر ولید". بلکې مونږ معلومات لرو چې خپله کورنۍ یې هم پدې نده توانېدلې، نو نور به څنګه وتوانیږي؟!.

نن د ملاعمر موجودیت نه په سیاست او واقعیت کې شتون لري او نه په غم و خفګان د امت کې، او شخصا زه، دا پداسې حال کې یو لوی خیانت ګڼم پدې چې ووایم: ((ملا عمر ژوندی دی او د عمل صحنې کې موجود دی)). ځکه مونږ ښه پوهېږو چې اسلامي امارت څه رقم ؤ، کله مو چې پکې ژوند کاوه، او ددې اسلامي حکومت نه مستفید شوي وو.

او دارنګه د ملا محمد عمر شخصیت په ښه توګه پېژنو، هغه یو لوی شخصیت و، کله چې اسلامي امت غافل و، په تنهایۍ د مبارزې میدان ته راغی او په لږ وخت کې د یو اسلامي دولت چې په تېرو قرنونو کې یې نظیر نه و، موفق شو.

هغه داسې امیر و چې تل یې د شهادت آرزو کوله، سلیم عقل دا نه مني چې داسې یو شخص دې یو نامعلوم ځای کې له ټولو مشکلاتو نه لرې او

د امت له مبارزې نه ګوښه آرام ناست وي، پداسې حال کې چې دی به پداسې حالت کې هېڅکله هم په بزدلۍ راضي نشي.

ابومریم الجهني روایت کړی له رسول اللهﷺ نه چې فرمایي: (من ولاه الله عزوجل شیئا من امر المسلمین فاحتجب دون حاجتهم، و خلتهم و فقرهم، احتجب الله عنه دون حاجته و خلته، وفقره یوم القیامة). [1]

ژباړه: څوک چې الله ورته د مسلمانانو د امورو یو مسئولیت ور په غاړه کړي، او هغه د مسلمانانو نیازمندۍ، تنګدستۍ او کمبودیانو ته رسیدګي ونکړي، الله تعالی به هم د هغه نیازمندۍ، تنګدستۍ او کمبودۍ ته د قیامت په ورځ رسیدګي ونکړي.

او بل اثر کې فرمایي: (من ولي امرا من امر الناس، ثم اغلق بابه دون المسکین، والمظلوم او ذي الحاجة اغلق الله تبارک و تعالی دونه ابواب رحمته عند حاجته، و فقره افقر ما یکون الیها). [2]

ژباړه: څوک چې د خلکو د امورو مسئولیت په غاړه اخلي، او بیا خپله دروازه د مسکینانو، مظلومینو او محتاجانو په مخ وتړي، الله تعالی به د خپل رحمت دروازې ددې کس د احتیاج په مخ وتړي، او د الله د رحمت په وړاندې به ترټولو فقیر کس وي.

[1] سنن ابوداؤد ۲۵۵۹

[2] مسند احمد ۱۵٦۵۱

کلونه پرلپسې پټ پاتې کېدل هېڅ نوع عذر نشي کېدای، او دا عمل د خائنانو او بزدلانو له صفاتو څخه دی، او د الله شکر دی چې زمونږ امراء يې لدې نوع خيانت نه محفوظ کړي دي، زمونږ مشران ددې ترڅنګ چې جهادي کارونه پرمخ وړي، خپل اهل او ميلمنو سره ليدنه کتنه کوي.

ددې رنګه دروغينې افسانې د منلو لپاره هېڅ څوک نه تياريږي، څنګه د اميرالمؤمنين لقب ورکړو؟ که نوموړی تر اوسه ژوندی وای، هېڅکله يې د سياست ميدان خالي نه پرېښود، او خپلې سترګې يې د روانو پېښو په اړه نه تړلې، نو بيا څنګه اميرالمؤمنين نه دفتر لري چې هلته د مسلمانانو استقبال وکړلی شي؟! پداسې حال کې چې قطر کې دفتر خلاصيږي ترڅو د کفارو استقبال پکې وکړلی شي؟!.

وَيُحِقُّ اللَّهُ الْحَقَّ بِكَلِمَاتِهِ وَلَوْ كَرِهَ الْمُجْرِمُونَ [سُورَةُ يُونس : 82]

ژباړه: او الله په خپلو فرمانونو سره حق حق ښيي، که د مجرمانو يې هر څومره بد ګڼي هم.

اوس چې حقيقت برملاء شوی، هېڅ رنګه دليل هغو کسانو څخه نه غواړو چې وايي ملا عمر ژوندی دی، نور مونږ هېڅرنګه دروغينو نامو او سياسي لوبو ته اړتيا نلرو، ما خپلو دوستانو سره د هغه ملاقات کړی او

هغه ښه پېژنو، په همدې علت هېڅوخت خپل تصمیم څخه نه شاته کېږو، تردې چې مخامخ يې ونه وينو! او د اسلامي شريعت موافق حکم کوو چې په خواشينۍ سره ملا محمد عمر غائب دی.

دلته ځيني هغه دلايل ذکر کوو چې غائب شخص نشي۔ کولای د مسلمانانو امير اوسي:

په فقه الجهاد کې راغلي: کله مسلمانان د امير د انتخابولو حق لري؟

(عندما يغيب او يقتل او يؤسر او يصاب بعجز، الامير او القائد الذي عينه الخليفة او يكون غائبا لاي سبب آخر في هذه الحالة يكون واجبا على المسلمين ان يختاروا لانفسهم اميرا بدون اذن الخليفة).

ژباړه: که کوم امير يا قائد چې د خليفة لخوا ټاکل شوی وي، غائب شي، مړ شي، اسير شي يا عاجز شي د رهبرۍ کولو نه، نو پدې حال کې پر مسلمانانو لازمه ده چې خپل ځان ته امير وټاکي او د خليفه اجازه هم شرط نده.

دليل: کله چې مؤته غزوه کې درې تنه هغه اميران چې د نبيﷺ لخوا ټاکل شوي و په شهادت ورسېدل نو مسلمانانو د رسول اللهﷺ له اجازې پرته خالد بن وليد د خپل امير په توګه وټاکه، او رسول اللهﷺ هم لدې کار نه راضي شو.

نو د خليفه په شتون کې چې مسلمانان دا حق لري چې ځان لپاره امير وټاکي نو کله چې لوی امير غائب شي نو څنګه به وي؟ پدې حال کې په مسلمانانو باندې قطعي واجب دی چې ځان ته امير وټاکي.

شيخ الاسلام ابن تيمية رحمه الله وايي: (يجب ان يعرف ان ولاية امر الناس من اعظم واجبات الدين، بل لا قيام للدين ولا للدنيا الا بها، فان بني آدم لا تتم مصلحتهم الا بالاجتماع لحاجة بعضهم الى بعض ولا بدلهم عند الاجتماع من راس حتى قال النبي صلى الله عليه وسلم اذا خرج ثلاثة في سفر فليؤمروا احدهم).

ژباړه: واجب دی چې پدې پوه شو چې ولايت امر د دين له لويو واجباتو څخه دی، بلکې نه دين او نه دنيا پرته لدې اقامه کېدای شي، ځکه د بني آدم مصلحت بې لدې نه اجراء کېږي، مګر د اجتماع په تشکيلولو، هغه هم د هغه احتياج پربناء چې يو بل ته يې لري، او بايد هره اجتماع کې يو رهبر موجود وي، تردې چې رسول الله ﷺ فرمايي : (هرکله چې درې کسان په مسافرت ووتل نو يو کس دې امير تعين کړلی شي). [3]

او خپلو انصار مجاهدينو ورونو ته چې افغانستان کې دي وايم: ای مجاهدينو او ای شازلميو! په سياسي لوبو دهوکه نشئ، ځکه بعضې خلک د اميرالمؤمنين ملا محمد عمر له نوم نه په استفادې سره مختلف فرمانونه

[3] رواه ابوداؤد

صادروي او تاسي د پاکستان کفري حکومت په ګټه استعمالوي، ضرور ده چې پوه شئ چې اميرالمؤمنين داسې بزدل امير نه ؤ چې له مرګ نه ووېرېږي، لکه څنګه چې ځيني کسانو داسې ښکاره کوله!

او ضروري ده هغه څه چې د خپلو نفسونو په اړه يې نه خوښوئ د خپلو استادانو په اړه يې هم خوښ نه کړئ، او مونږ هېڅکله هغه ښېګڼې چې دوی اسلامي امت سره کړي، نه هېروو. او د ژوند تر آخري شېبو پورې ددوی په حق کې دعاء کوو، فقط وايو که نوموړی شهيد وي، الله تعالی دې قبول کړي او که اسير وي الله دې خلاص کړي.

الحمدلله، الله تعالی زمونږ زړونه نسبت د پاکستان په جهاد خلاص کړل، او داسې ډېرې نقشې او دامونه چې پاکستان حکومت د مجاهدينو دهوکه کولو لپاره جوړې کړې وې، ومو ليدلې او خنثی مو کړې. او دې حکومت اصلي نقش د امارت په سقوط کې درلود، مونږ د ډېرو علماؤ او رهبرانو خرڅلاو ددوی په لاس وليدل.

تاسو مجاهدين هم د هغه حرامو پيسو چې د مجاهدينو د وينو په بدل کې ورکول کېږي، دهوکه نشئ. ځانونه وساتئ چې د خائن حکومت په خدمت کې واقع نشئ.

الله تعالی فرمايي: (يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا ٱتَّقُوا ٱللَّهَ وَكُونُوا مَعَ ٱلصَّٰدِقِينَ)

ژباړه: ای مؤمنانو! د الله څخه وویرېږئ او د رښتینیو خلکو ملګري شئ.

ټولو ته څرګنده ده کله چې د نړۍ کفارو په اسلامي امارت یرغل وکړ، امیرالمؤمنین داسې ویلي و: (که هر ګاونډی هېواد امریکا سره دې صلیبي جنګ کې مرسته وکړي، د هغه پرضد هم د جنګ اعلان کوو).

که نوموړی اوس غائب نه ؤ، مجاهدینو ته یې د پاکستان پرخلاف امر کاوه، او البته خپله یې هم د جنګ په اول خط کې برخه اخسته.

که غائب نه ؤ، هېڅکله یې هم خپل نږدې دوست شهید محمد طاهر فاروق تنها نه پرېښود، او هغه مجاهدین چې کلونه د هغه د قیادت لاندې وجنګېدل، بغیر له کمک او ارتباط نه نه پرېښودل.

ملا محمد عمر مجاهد، هغه کس ؤ چې د ازبکستان اسلامي حرکت په مجاهدینو یې باور درلود، په همدې علت، ((جمعه بای نمنګاني)) یې د عموم عرب او عجم مهاجرینو عمومي مسئول په افغانستان کې وټاکه.

که نوموړی غائب نه ؤ، هېڅکله یې د هغه توهین آمېز فلم چې پکې د رسول الله ﷺ کاریکاتور رسم شوی و، سکوت نه کاوه.

که نوموړی غائب نه ؤ، د کفارو لخوا د قرآنکریم په سوزولو چې د افغانستان خلکو پرې مظاهرې وکړې، غلی نه کېناسته.

که نومړی غائب نه ؤ، هیڅکله د احمر جومات په لویې واقعې چې پکې زرګونه مسلمانې خویندې په شهادت ورسېدې، غلی نه کېناسته.

که نومړی غائب نه ؤ، هغه هیئت(پلاوی) چې د اسلامي امارت په نوم د کویټې شورا لخوا راغلی ؤ، نشو کولای مهاجرین د اسلامي شریعت د تطبیق نه منع کړي، ځکه مهاجرینو د همدې شریعت لاندې ژوند کولو لپاره هجرت کړی ؤ.

که نومړی غائب نه ؤ، د عراق او شام اسلامي دولت چې وروسته بیا په اسلامي خلافت تمام شو، غلی نه کېناسته.

مثلا: ملا عبدالسلام ضعیف هغه شخص دی، چې د ((شوروي سره تزار)) تجاوزونو کې د ملا محمد عمر سره اوږه په اوږه جنګېدلی، دارنګه اسلامي امارت کې د دفاع وزیر د معاون په توګه او په آخر وخت کې د امیرالمؤمنین خاص سفیر په توګه خارجي ملکونو ته وګمارل شو.

کله چې نومړی د امارت سفیر په حیث په اسلام آباد کې ؤ، څو ځلې یې دا کوشش وکړ چې امیرالمؤمنین سره ملاقات وکړي، لیکن ندی توانېدلی چې ملا صاحب سره ملاقات وکړي، بلکې حتی ندی قادر شوی چې ځای یې هم معلوم کړي، د عبدالسلام ضعیف تلاشونه د امیر په پیدا

كولو همداسې جاري و، چې د پاكستان مرتد حكومت استخباراتو (ISI) نوموړی دستگير او په امريكايانو يې خرڅ كړ.

عبدالسلام ضعيف وايي: (د ملا محمد عمر د ليدلو لپاره په وار وار قندهار ته تللی يم، او ښه مې ليدلی، او ښه يې پېژنم. لدې كبله زه د هغه سړي په حيث چې هغه مې ليدلی خبرې كوم، دا كوم جماعتونه چې وروسته د اسلامي امارت د سقوط نه هغه سره بيعتونه كړي، نه د تنظيمونو افرادو او نه نمايندگانو يې ملاعمر ليدلی، ددې سربېره د بيعتونو قبوليت د هغه له طرف نه هېڅ ځواب يې ندی ترلاسه كړی). [4]

هغه اشخاص چې د ملاصاحب له نوم نه په استفادې مجاهدين غولوي، بايد له الله تعالی څخه ووېرېږي! اميرالمؤمنين تاسو په څېر بزدل نه ؤ، چې په يوځای كې لرې د جهاد له ميدان نه ژوند وكړي! آيا ملا محمد عمر د يو عادي مجاهد په اندازه هم شجاعت او غيرت نلري چې جهادي مسئولينو سره تماس ونيسي! پداسې حال كې چې نوموړی نه ملائكه ده او نه پېری، چې د عامو خلكو له نظارې لرې ژوند وكړي، تركله به زمونږ مشران په بزدلۍ متهم كوئ؟ آيا دعوت كول د يو غائب امير په لور ښكاره دروغ ندي؟ پداسې حال كې چې اسلام مبين دين

[4] حياتي مع طالبان ١٦١ – ١٦٢ عبدالسلام ضعيف

هېڅکله ددې کار جواز نه ورکوي! البته تاسو نسبت په مونږ پدې حقيقت ښه پوهېږئ.

د اسلامي امارت د سقوط نه وروسته، ملا محمد عمر هېڅ کس په کوم منصب ندی تعين کړی، او دارنګه هغه کسان چې د امارت له سقوط نه مخکې د کار په سر کې ول، وروسته له سقوط نه د مسئوليت په کولو عاجز ول.

ترکله امت ته فرېب ورکوئ؟ ترکله باطل ته د حق جامه وراغوندئ؟ آيا دا ممکن ده چې د غيرشرعي وسائلو او ادعاؤ په کولو اسلامي امارت بيا قائم شي؟ هو! ممکن ده افغانستان بيا فتح شي، ليکن سوال دا دی کله به د پاکستان طاغوتي حکومت له تاثيراتو څخه آزادېږي؟ حقيقت ووايئ! هغه مجاهدين چې شپه او ورځ په خپلو ځانونو او مالونو قرباني ورکوي، احمق مه ګڼئ، او دې تلاشونو ته مو خاتمه ورکړئ.

وَلَا تَلْبِسُوا الْحَقَّ بِالْبَاطِلِ وَتَكْتُمُوا الْحَقَّ وَأَنتُمْ تَعْلَمُونَ [سُورَةُ البَقَرَة : 42]

ژباړه: او باطل ته د حق جامه مه وراغوندئ؛ او له پوهېدو سره سره د حق پټولو هڅه مه کوئ!.

پيام مو امريکا او مرستندويانو ته يې دا دی: ای د نړۍ کفارو، هېڅکله ان شاء الله پدې پليتو سياساتونو نشئ کولای مجاهدين دهوکه کړئ! هڅه

مکوئ چې مجاهدین پخپلو دروغونو دهوکه کړئ لکه دا چې سبا ووایئ: (مونږ ملا عمر په قتل رسولای)، لکه څنګه چې دې نه مخکې مو دا ادعاء کړې وه چې مونږ اسامه په قتل ورساوه او جسد مو ورته د اسلامي شریعت مطابق (!) سین ته ګوزار کړ.

آیا دا غواړئ چې یو بل جسد هم (د شریعت اسلامي مطابق!) لکه اوباما چې ګمان کاوه، سین ته واچوئ؟

په همغه کال کې وروسته له یوې میاشتې د خرافاتي کیسو نه مو د اسامه بن لادن په اړه ستاسو مزدور حامد کرزي هم یوه بیانیه د ملا عمر د قتل په اړه صادره کړه. او هڅه یې وکړه چې ځیني دروغ تصاویر هم خلکو ته وښایي، لیکن د هغه ادعاء ته هېڅ چا توجه ونکړه.

الله فرمايي: (إِنَّهُمْ يَكِيدُونَ كَيْدًا * وَأَكِيدُ كَيْدًا * فَمَهِّلِ الْكٰفِرِينَ أَمْهِلْهُمْ رُوَيْدًا)

ژباړه: دا خلك سختې دسیسې جوړوي؛ او زه به هم یو پوخ تدبیر کوم؛ نو پرېږده [ای پېغمبره!] دا کافران څه لږ غوندي په خپل حال پرېږده.

ټول امت د حقایقو درک کولو ته دعوت کوم! مسلمانان باید د خپلو صادقو امیرانو په اړه بدګمانه نشي، مونږ هېڅرنګه پټ امیران چې د ملائکو یا پیریانو له ډلې څخه وي، نلرو. او په آینده کې به یې هم نلرو.

هغه کسان چې غواړي د امت رهبران وګوري، ددې زمنیه مساعده ده، امیران، داعیان او د امت رهبران په غارونو کې د مجاهدینو له نظارې نه

لرې ژوند نه کوي! ځکه زمونږ الګو محمد رسول الله ﷺ او صحابه کـرام رضي الله عنهم او سلف صالحین دي، زمونږ معروف استادان لکه عبدالله عزام، ملا محمـد عمـر مجاهد، اسامه بن لادن، محمد طاهر فاروق، فرمانده جمعه بای، امیرخطـاب، شامل بسایوف، فرمانده دادالله، ابومصعب الزرقـاوي، امیـر بیـت اللـه او نـور دي، دا هغه کسان ول چې مونږ ته یـې تعلـیم راکـړ چـې د امـت لـه سـترګو مخفي ونه اوسو. دوی ددې دین په لاره کې ځانونه فـداء کـړل، او مـونږ تـه یې دا حقیقت په ډاګه کړ چې د اسلام شوکت حفظ کړو، بې له شکه هغوی د خپلو اقوالو مطابق عمل وکړ.

له الله تعالی نه استدعاء لرو چـې خپـل رضایت زمـونږ نصـیب کـړي، مـونږ مجاهدین هغه کسان یو چې پدې فعلي عصر کـې جهـاد مـو تجدیـد کـړ، او مونږ یو چې ددې امت د قهرمانانو سیرت په خپلو وینو د اسلام تـاریخ کـې ثبت کړ، لدې جهته خپلـو مجاهـدینو ورونـو نـه غـواړو چـې خپـل منـور او مطهر تاریخ په ناپاکو او خبیثو سیاستونو آلوده نکړي. پـه آخـر کـې لـه اللـه تعالی نه غواړو چې مونږ د صادقینو لـه جملـې څخـه کـړي او پـه اسـلام مـو ثابت باقي پاتې کړي، دارنګه مونږ ته توفیق راکړي چې د الله په لاره کې د هیڅ ملامتګر له ملامتیا څخه ونه ویرېږو.

والسلام علیکم ورحمة الله وبرکاته، ستاسو ایماني ورور عثمان غـازي د ازبکسـتان اسلامي حرکت امیر.

(( ۱ صفر ۱۴۳٦ هـ مطابق ۲۴ نوامبر ۲۰۱۴ میلادي ))

دا هغه پيغام و چې امارت ته متعلق د لـوی تنظـيم امیـر د مـلا عمر په اړه نشر کړ، خو د امارت نويو مشرانو دا خبره بياهم نه ښکاره کوله پداسې حال کې چې د ملا محمد عمر په بيعت کـې په لکونو لکونـو مسـلمانان حيـران پـاتې ول دا څـه روان دي او ولې امارت ورځ تر بلې په خرابېدو دی، امير چېرته دی حالانکه نبي ﷺ فرمايي: (وَإِنَّمَا الإِمَامُ جُنَّةٌ يُقَاتَلُ مِن وَرَائِهِ وَيُتَّقَى بِهِ) ﴿ متفـق عليـه ﴾

ژبـاړه: امـام بـه د يـو ډال حيثيـت لـري چې د هغـه ترشـا بـه خلـک جنګېږي او د هغه په سيوري کې به ځان خوندي کوي.

خو ددوی امام نور په کلونو کلونو ورک و، او په نوم يې مختلف فرمانونه او پيغامونه راتلل، خو دا ملا محمد عمر نه و.

دا سلسله همداسې روانه وه او هغه کسان چې نوموړي سره يـې بيعت و، همدا ټينګار يې کاوه چې ملا عمر ژونـدی نـدی او پـه نوم يې نور کسان په مونږ حکومت کوي.

خو د امارت نوي مشرانو د هغه وفات پټ ساتلی و، او هغه يـې ځکه نه ښکاره کاوه، چې د هغه په نوم يې مختلـف فرمانونـه او پيغام پاڼې نشرولې، چې دې پيغامونو او نامو کې داسـې کفـري او غلطې خبرې وې، چې اسلام سره سل په سله په ټکر کې وې، خو دا يې ځکه د هغه په نوم نشرولې چې کشران طالبان دې ته

آماده کړي، ترڅو يې يو ورځ مستقيما کفارو سره د غير اسلامي معاهدې مېزونو او کنفرانسونو ته کېنوي، د کشرانو طالبانو ذهن يې آرام آرام په همدې پيغامونو جوړاوه، خو دا د هغه خبرې نه وې، بلکې د هغه په نوم نوي منحرف مشران ول، چې د امارت خرڅول او يو ډيموکراټيک نظام جوړول يې هدف و.

همداسې وشول چې دوی آرامه آرامه دې پيغامونو په نشرولو عملي ميدان ته هم ودانګل او قطر کې يې رسمي دفتر جوړ کړ، کفارو سره ناستې مذاکرې شروع شوې، مختلفو کفري ملکونو ته سفرونه او هغوی نه مرستط اخستل شروع شول او...

**[چې ددې مسئلې تفصيل په راتلونکي بحثونو کې راځي ان شاء الله...].**

خو د الله تعالی تدبير ډېر قوي او بنيادي دی، دې وخت کې الله رب العالمين د ټولې نړۍ په مسلمانانو يو لوی فضل او احسان وکړ او هغه په ۱۴۳۵ رمضان المبارک مياشت کې د شام او عراق مجاهدينو لخوا د خليفة المسلمين ابوبکر البغدادي حفظه الله په مشرۍ د خلافت اعلان و، د نړۍ له ګوټ ګوټ نه ډېرو جهادي تنظيمونو خلافت سره بيعت وکړ، او پداسې حال کې چې نړۍ کې په مسلمانانو ظالم حاکمان او ظالم نظامونه مقرر ول، الله تعالی خپل سپېڅلی نظام(خلافت) د يو عادل خليفة په مشرۍ مسلمانانو ته ورکړ، لکه څرنګه چې رسول الله ﷺ

ابوذرﷺ ته فرمايلي و چې كله فتنې ډېرې شي او داسې حاكمان پيدا شي چې د جهنم په دروازو ولاړ وي او خلک جهنم ته دعوت كوي نو دداسې فتنو زمانه كې يې علاج داسې ښودلی:
(...فإن كان في الارض يومئذ لله خليفة فالزمه وإن ضرب ظهرک و أخذ مالک) (كه چېرته د فتنو په داسې زمانه كې د ځمكې پرمخ خليفه موجود و، نو هغه كلك ونيسه، كه حتى ستا ملا يې وهله او ستا مال يې اخسته).

خو الحمدلله دا داسې عادل او نېک خليفه و، چې ظلم او جبر نه بلكې د خلافت ساحې يې له عدل او انصاف نه ډكې كړې باذن الله.

نو خليفة المسلمين سره له هرې خوا مخلصو مجاهدينو مؤمنانو بيعتونه همداسې كېدل، چې دې مخلصو مجاهدينو كې د خراسان مجاهدين هم ول؛ خلافت سره يې بيعت وكړ، او د خليفة المسلين لخوا د ولايت اجازه وركړل شوه، **خراسان ولايت** اعلان شو، مجاهدينو خپله تمكين ساحه كې شريعت اعلان كړ، او يو اسلامي نظام د خلافت يوه څانگه يې فعاله كړه، خو دې بيعتونو سره يو دم د امارت نه باورونكی دريځ مسلمانان ډېر غمجن كړل، هم مجاهدين او هم عام مسلمانان پدې ډېر

خفه شول چې ولې امارت يې پرضد اسلحه راپورته کړه، او قتال يـې ورسره وکـړ، دې وخـت کـې ډېـر دعوتونـه او پيغامونـه د اسلامي دولت لخوا د امارت نويو مشرانو ته وشول.

دا دعوتونه هم د سپين ږيرو او استازو په لېږلو وشول او هم د اعلامي مختلفـو کتبـي رسـالو، غږيـزو رسـالو، کتبـي پيغـامونو، غږيزو پيغامونو، کتابونو او ويـډيوګانو پـه ذريعـه وشـو چـې يـو مثال يې ( د اسلامي دولت ولاية خراسان پيغام ) پـه نامـه کتـاب دی چې شيخ عبدالحسيب پخپله وليکه او نشر يې کـړ، دې دعوتونـو کې الله ډېرو مخلصانو ته هدايت واچاوه، خو د امارت مشـرانو لخوا به هر وار د "**نه**" او د "**جنګ**" ځـواب راتـه. [ددې مسـئلې تفصيل د اسلامي دولت نورو کتابونو کې ليدلی شئ].

په هرصورت دې ټولو پېښو د امارت نوي مشران ډېر وارخطا او دې ته اړ کړل چې د ملا عمر وفات تائيد کړي.

د ملا محمد عمـر د وفـات څرنګـوالي، نېټـې او ځـای پـه اړه د دوهم نسل طالبانو اختلاف وکړ، خو په هر صورت تائيد يې کړ:




د اسلامي امارت سیاسي دفتر د خپل رهبر اميرالمؤمنين ملا محمد عمر مجاهد د وفات خبر ټول اسلامي عالم ته اعلانوي، انا لله و انا اليه راجعون.




ددې په علم سره چې د ملا عمر وفات د افغانستان په جنوب د ۲۰۱۳-۲۳-۴ تاریخ کې پېښ شوی. له الله نه غواړو چې رحم او مغفرت ورته وکړي، او جنت ورکړي، اللهم آمين.




بې له شکه چې د اميرالمؤمنين د وفات خبر د سياسي دفتر او رئيس نه يې پټ پاتې شو، لکه څرنګه چې له ټولو افغاني مسلمانانو نه پټ پاتې شو.




مهم: د اميرالمؤمنين ملا عمر د وفات خبر باندې نه و خبر مګر درې علماء او اخترمحمد منصور او ملا عبدالقيوم فقط، نه نور څوک.

د ملاعمر د وفات تاریخ د طالبانو رسمي مرجع د ۲۰۱۳ میلادي (۱۴۳۴ قمري) کال وایي، لیکن هغو مخلصو مجاهدینو چې اسلامي دولت سره بیعت وکړ، او منحرف دوهم نسل امارت یې پرېښود نو د ملا عمر مجاهد د وفات تاریخ یې څو کاله مخکې یاد کړی، او دایې ویلي چې د امارت له سقوط نه وروسته یو دم ورک شوی او بیا چا ندی لیدلی.

اگرکه د ملا محمد عمر د وفات په نېټه کې ددوی هم اختلاف دی، خو دا د بحث خبره نده، ځکه د خلافت د منعقد کېدلو لپاره د یو تنظیم د مشر ژوند شرط ندی، بلکې دا ثابته ده چې ملا عمر خلیفه نه بلکې یو جهادي امیر و.

د مشرق او مغرب مسلمانانو ته په کلونو کلونو دا دروغ ویل چې ملا عمر ژوندی دی، او د صحنې ترشا د هغه په نامه سیاسي لوبې روانول؛ دا د هغه خائنینو کار ؤ چې وروسته بیا د ملا عمر د جانشین په صفت صحنو ته راښکاره شول، او د امارت صف یې د نړی د استخباراتو د پلانونو تطبیقولو مهره وگرځوله.

چې ددوی د دوراغو او مکرونو دا دریځ همداسې دوام وکړ تر اوسه پورې، او اوس هم حتی لگیا دي خپل ښکاره کفر په میډیایي دروغونو او بې بنیاده توجیهاتو باندې پټوي.

د اوسنيو طالبانو د ښکاره انحراف بېلګې وروسته د مـلا محمـد عمر له وفات نه دومره واضحه دي، چې هېڅ حاجـت د بيـانولو نه لري، ځکه هر مسلمان چې خپل دين نه لرې هـم خـبر واوسي نو پدې ابتدائي مسئلو او ښکاره انحرافاتو باندې پوهېږي.

چې تشريح يې وروسته راځي ان شاء الله...

کله چې د ملا محمد عمر د وفات خبر د امارت له طرفه رسمي ډول باندې تائيد شو نو د ازبکستان اسلامي حرکت يـو پيغـام د امارت مشرانو ته ولېږه، هغه دلته رانقلوو:

## د ازبکستان اسلامي حرکت رهبري شورا لخوا د افغانستان اسلامي امارت مشرانو ته پيغام:

بسم الله الرحمن الرحيم

الحمدلله رب العالمين، معز الاسلام والمسلمين و مـذل الكفـر و الكـافرين، والصلوة والسلام على نبينا محمد الذي علـم لامتـه دروس الـولاء للمسـلمين والبراء من الكافرين وعلى آله وصحبه اجمعين، آمين، اما بعد:

د افغانستان اسلامي امارت محترمو رهبرانو، علماء کرامو او قائدينو!

السلام عليکم ورحمة الله وبرکاته

د محبوب امیر د عصر بت ماتوونکی امیرالمؤمنین ملا محمد عمر مجاهد رحمه الله د شهادت د اعلان په مناسبت چې د ۱۴۳٦ هـ د شوال په ۱۴ اعلان کړای شو. ومو غوښتل چې د مهاجرو مجاهدینو په صفت چې اضافه له ۱۷ اوولسو کالو جهادي تجربه د خراسان په ځمکه کې لرو او په واقعاتو یې آگاه یو، تاسو ته ځیني خبرې وړاندې کړو.

له الله تعالی نه امید لرو چې ددې ویناؤ په برکت مونږ نه راضي شي او دا باعث د نیکبختی زمونږ په دنیا او آخرت کې وگرځوي، آمین.

ټول پوهېږي چې امیرالمؤمنین ملا محمد عمر مجاهد رحمه الله د القاعدة د تنظیم مشر ((اسامة بن لادن[رحمه الله])) لپاره خپل ټول دولت قربان کړ او شیخ اسامه بن لادن یې امریکایي طاغوتیانو ته ونه سپاره.

له همغه وخت راهیسې د افغانستان په خاوره کې مسلحانه جهاد د صلیبیانو او داخلي منافقینو پرضد شروع شو، لیکن ددې سختیو گاللو او قربانی ورکولو باوجود، د الهي شریعت د حاکمیت پرځای مونږ د افغانستان اسلامي امارت د رهبرانو د انحراف او د هغوی د ښکاره خیانتونو شاهدان شوو، چې جهاد او شریعت سره یې وکړل. له جملې:

۱- د تېرو څوارلس ۱۴ کالو په دوران کې د امارت د رهبرانو لخوا د امیرالمؤمنین ملا محمد عمر د وفات هېڅ نوع معلومات د خراسان

مجاهـدینو تـه ورنکـړل شـول، او تـل لـه دروغ او دروغګـویی نـه کـار واخستل شو، د نوموړي لـه آدرس نـه کاذبانـه بیـانیې د سیاسي ګتـو پـه موخه وړاندې کېـدې، او پـدې اواخـرو کـې د نومـوړي د وفـات پـه اړه مختلفې ګډوډې خبرې د امارت د رهبرانو لخوا وویل شـوې او همداسـې ادامه لري.

باید یادآوري وکړو چې استفاده کوونکي؛ وروسته لدې نشي کولای چـې مسلمه امت او مجاهدین په دروغینو سیاستونو وغولوي.

هېڅرنګه ثبـوت ددې نشـته چـې د مـلا عمـر کـورنی، بچیـان او نـژدې خپلوانو دې نوموړی په تېرو څوارلسو کلونو کـې لیـدلی وي. پـدې اوږد مدت کې ملا صاحب یووار هم د افغانستان د مجاهدینو پـه سـترګو نـدی ظاهر شوی، او یوه صوتي یا تصویري بیانیه یې هم نده نشر شوې. پداسـې حال کې چې امیرالمجاهدین شیخ اسامه بن لادن رحمه الله چـې لـه مـلا صاحب نه ډېر د الله دښمنانو ته مطلوب ؤ، د رسـنیو پـه صـحنه راښـکاره کېږي او لسګونه صوتي او تصویري بیانیې یـې پرڅـای پریښـي دي. او د جهادي ډلو د رهبری لپاره یـې سـلګونه کتبـي رسـالې مربوطـه امـراؤ تـه لیګلي دي. پدې سبب مـونږ دا ادعـاء چـې ((امیرالمـؤمنین د مریضـی لـه وجې چې دوه هفتو نه را پدېخوا ورته پیدا شـوې وه، وفـات شـوی دی.)) په هېڅ صورت نه منو.

۲- پدې اوږد مدت کې د پاکستان طاغوتي حکومت په اړه چې د امارت په سقوط کې يې مستقيم او کليدي لاس درلود، شرعي موقف د امارت د رهبرانو لخوا اختيار نکړای شو.

کله چې د ازبکستان اسلامي حرکت په ۲۰۰۴ ميلادي کال کې د پاکستان مرتد حکومت پرضد مسلحانه اقدام وکړ، له هغه وروسته د امارت د رهبرانو لخوا د ملامت او طعنونو لاندې ونيول شو، دارنګه د ۲۰۰۷ ميلادي کال په پسرلي کې په جنوبي وزيرستان کې ملا نذير د طالبانو په لباس کې زمونږ پرضد په مسلحانه جنګ اقدام وکړ. پداسې حال کې چې د پاکستان طاغوتي حکومت پرضد بيرغ اوچتول د افغانستان اسلامي امارت د مجاهدينو له واجباتو څخه و.

ليکن په خواشينۍ سره ددې کار په عوض، د هغو ډلو چې د پاکستان ناپاک پوځ پرضد جنګېدل، له توطئو او غلطو تبليغاتو څخه کار واخستل شو.

يٰٓأَيُّهَا الَّذِينَ ءَامَنُوا لَا تَتَّخِذُوا عَدُوِّى وَعَدُوَّكُمْ أَوْلِيَآءَ تُلْقُونَ إِلَيْهِم بِالْمَوَدَّةِ وَقَدْ كَفَرُوا بِمَا جَآءَكُم مِّنَ الْحَقِّ... [سُورَةُ الْمُتَحنَة : 1]

ژباړه: ای ايمان راوړونکو، که تاسي زما په لاره کښې د جهاد کولو لپاره او زما د رضا د ګټلو په خاطر(وطن پرې ايښئ او له کورونو څخه) وتلي

یاست؛ نو زما او ستاسي دښمنان، خپل دوستان مه نیسئ. تاسي له هغوی سره دوستانه اچوئ، پداسې حال کښې کوم حق چې تاسي ته راغلی دی، د هغه له منلو څخه هغوی انکار کړیدی...

د څوارلس کالو په دوران کې، د اسلامي امارت مشران او د رهبري شورا غړو خپل ټول فعالیتونه د پاکستان په کوېټه او نورو ښارونو کې سرته رسول، او د هغه ظلمونو په اړه يې سکوت وکړ چې مسلمانانو سره په هغه هېواد کې کېدل.

په هغه اعلامیه کې چې د کوېټې د شورا لخوا د امیرالمؤمنین د مرگ په اړه نشر شوې وه، د نوموړي تعریف او توصیف په داسې بیان شوی و: (ملا محمد عمر هېڅکله افغانستان ندی ترک کړی، او گاونډیو هېوادونو لکه پاکستان ته ندی تللی، او دا د هغه د غیرت او شجاعت ښکارندوی دی). لیکن د رهبری د انتقال په يې د افغانستان له خاورې هېڅ څه هم ندي ویلي.

پداسې حال کې چې د افغانستان اکثره منطقې د متجاوزینو له ولکې څخه پاکې شوي دي، آیا د رهبری شورا نه غواړي چې اوچتې بنگلې، مډرن گاډي او امن ځایونه ترک کړي یا دا چې د پاکستان استخبارات اجازه نه ورکوي؟!.

د پام وړ نکته دا ده! داسې حال کې چې د امارت رهبران د کویټې په ښار کې بې له هیڅ مشکل نه خپلو فعالیتونو ته دوام ورکوي، ولې د ملا محمد عمر نائب ((ملا برادر)) د پاکستان په زندان کې بندي دی؟ زمونږ په نظر ملا برادر ونه غوښتل چې د پاکستان د استخباراتو د لاس آله جوړه شي، او د سیاسي گټو لپاره پرې لوبې وشي. ولې د ملا برادر د آزادۍ لپاره پاکستان حکومت باندې فشار نه واردیږي. حالانکه زرگونه مجاهد د افغانستان اسلامي امارت، د پاکستان په خاوره کې آزادانه ژوند کوي؟!

۳- دې څوارلس تېر کلونو کې چې تېر شول، د افغانستان ۷۰٪ خاوره د مجاهدینو لاس ته ولوېده، لیکن پدې فتح شویو ساحو کې د اسلامي شریعت تطبیق په پوره ډول ونشو. د شرک، بدعاتو او خرافاتو مقابله ونشوه. د الهي حدود تطبیق لپاره هیڅ هلې ځلې ونشوې.

مسلمانان معروف باندې امر او منکراتو څخه نه نهی کېږي، بلکې دې برخو کې فعالیتونه ډېر محدود دي، او ډېري مواردو کې د خلکو خوښې مطابق حکم کېږي. پداسې حال کې چې د جهاد هدف د الهي احکاماتو تطبیق دی. ولې طالبانو د خپل حکومت په دوران کې کله چې ټوله نړۍ ورسره مخالفه وه، د شریعت د احکاماتو تطبیق وکړ. لیکن اوس د دیني امورو د تطبیق هیڅ نوع جرأت نه کېږي.

وَأَنِ احْكُم بَيْنَهُم بِمَآ أَنـزَلَ اللَّـهُ وَلَا تَتَّبِـعْ أَهْـوَآءَهُمْ وَاحْـذَرْهُمْ أَن يَفْتِنُـوكَ عَنۢ بَعْضِ مَآ أَنزَلَ اللَّهُ إِلَيْكَ ۖ ... [سُورَةُ المَائدة : 49]

ژباړه: نو [ای محمده!] ته د الله له نازل کړي قانون سره سمه ددې خلکو د چارو فیصله وکړه، او د هغو د خواهشاتو پیروي مه کوه. پام کوه چې دا خلك تا په فتنه کښې وانچوي، یوه ذره قدرې دې هم له هغه هدایت ښخه وا نه ړوي چې الله تا ته درلېږلی دی...

۴- الله تعالی په مختلفو آیتونو کې مونږ ته امر کړی چې کافران خپل دښمنان وګڼئ. ولې د افغانستان رهبري شورا رهبران ددې آیت په خلاف کفري حکومتونو سره سیاسي رابطې ساتي او د هغوی د رضا کولو کوششونه کوي؟

يَٰٓأَيُّهَا الَّذِينَ ءَامَنُوا لَا تَتَوَلَّوْا قَوْمًا غَضِبَ اللَّهُ عَلَيْهِمْ قَدْ يَئِسُوا مِنَ الْءَاخِرَةِ كَمَا يَئِسَ الْكُفَّارُ مِنْ أَصْحَٰبِ الْقُبُورِ[سُورَةُ المُمتَحنَة : 13]

ژباړه: ای مؤمنانو، هغه خلك دوستان مه نیسئ چې الله وربانـدې غضب کړیدی، چې له آخرت ښخه داسې ناهیلي دي لکه ښنګه چې په قبرونو کښې پراته کافران ناهیلي دي.

له جملې: د طالبانو تلاش په ملل متحد کې د ګډون، په قطر کې د سیاسي دفتر پرانیستل د نړۍ سترو کفري مشرانو په اجازې سره، د صلح

په کنفرانس کې ګډون د صليبي هېواد (ناروې) په مېزبانۍ ددې هېواد په پايتخت کې، د سفيرانو لېږل ملحد حکومت چين ته او د همکارۍ او مرستې غوښتنې کول، دارنګه د طالبانو ناسته او مذاکره له مرتد افغان ښځينه و سره په اسلو ښار کې د طالبانو د تحريف يوه بله نمونه ده.

د ګاونډيو کفري هېوادونو نه د مرستې پېشنهادونه، مرسي طاغوت ته د همدردۍ اظهار حالانکه هغه د ډيموکراسۍ حاکم و، او... دا هغه ژوندي مثالونه دي چې د طالبانو انحراف له صحيح منهج څخه ثابتوي.

الله تعالی ددې قبيحو او بدو کړنو په عاقبت کې داسې فرمايلي دي:
يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓا۟ إِن تُطِيعُوا۟ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ يَرُدُّوكُمْ عَلَىٰٓ أَعْقَٰبِكُمْ فَتَنقَلِبُوا۟ خَٰسِرِينَ [سُورَةُ آل عِمرَان : 149]

ژباړه: ای مومنانو! که تاسي د هغو خلکو په خوښه لاړ شئ چې هغو کفر غوره کړيدی، نو هغوی به تاسي بېرته په شا واړوي او تاسي به ناکام شئ.

د تعجب ځای دا دی چې د امارت مشران داسې سياست پرمخ وړي، او ادعاء کوي چې د رسول اللهﷺ سيرت يې عملي کړی! حالانکه کوم سياست چې رسول اللهﷺ له کفارو سره پرمخ وړی لداسې تهمتونو او بهتانونو څخه پاک و، الله تعالی قرآنکريم کې د کفارو له دوستۍ څخه منع فرمايلې: (لَّا يَتَّخِذِ ٱلْمُؤْمِنُونَ ٱلْكَٰفِرِينَ أَوْلِيَآءَ مِن دُونِ ٱلْمُؤْمِنِينَ ۖ وَمَن

يَفْعَلْ ذَٰلِكَ فَلَيْسَ مِنَ اللَّهِ فِي شَيْءٍ إِلَّآ أَن تَتَّقُوا مِنْهُمْ تُقَىٰةً ۗ وَيُحَذِّرُكُمُ اللَّهُ نَفْسَهُ ۗ وَإِلَى اللَّهِ الْمَصِيرُ﴾ [سُورَةُ آل عِمرَان : 28]

ژباړه: مؤمنان دې هيڅکله داسې نه کوي چې مؤمنان پرېږدي او له کافرانو سره ملګرتيا او دوستي وکړي. څوک چې داسې چلند وکړي، د هغه له الله سره هيڅ اړيکه نشته. خو که تاسي د هغوی (کافرانو) له ظلم څخه د ځان ژغورلو په خاطر، په ظاهره دغه ډول چلند غوره کړئ، نو (بيا څه باک نشته). خو الله تاسي له خپله ځانه ويروي او د هماغه (الله) لوري ته ستاسي ورګرځېدل دي.

۵- په تېرو څوارلسو کلونو کې ټولې بيانيې چې د اميرالمؤمنين له آدرس نه نشرېدلې، او هغه ناستې او مذاکرې چې قطر کې د صلح لپاره کېدلې، نو د قوميت او د افغانستان د سرحدونو په اړه پکې بحث شوی دی، پداسې حال کې چې دارنګه سياست د توحيد او اسلامي عقيدې اساس له منځه وړي، په تېرو ۳۵ کالو کې چې تېر شول، د افغانستان خاوره کې نه يوازې افغانانو بلکې د اسلامي امت زرګونو مهاجرو قهرمانانو د نړۍ له هر کونج نه د توحيد بيرغ د اوچتولو لپاره خپلې وينې تويې کړې، البته دا قربانۍ د افغانانو د منافعو لپاره نه وې، بلکې د مسلمانانو د منافعو لپاره اهداء شوې! ولې تاسي د افغانستان اسلامي امارت رهبران

دې عقیدوي مسئلې ته اهتمام نه کوئ، او یا لدې الهي آیت نه چې د حقیقي مؤمنانو په اړه ذکر شوی بې خبر یاستئ؟

وَالَّذِينَ ءَامَنُوا وَهَاجَرُوا وَجَٰهَدُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ وَالَّذِينَ ءَاوَوا وَّنَصَرُوٓا أُولَٰٓئِكَ هُمُ الْمُؤْمِنُونَ حَقًّا ۚ لَّهُم مَّغْفِرَةٌ وَرِزْقٌ كَرِيمٌ [سُورَةُ الأنفَال : 74]

ژباړه: کومو خلکو چې ایمان راوړ، او د الله په لار کښې یې هجرت وکړ او جهاد یې وکړ. او کومو خلکو چې پناه ورکړه او مرسته یې وکړه، همغوی رښتیني مؤمنان دي. د هغو لپاره د ګناهونو ښښنه او ډېره ښه روزي ده.

٦- د افغانستان اسلامي امارت د شیعه روافضو په اړه چې د اهل سنت اساسي دښمنان دي ولې شرعي موقف نه غوره کوي؟ هغه ضررونه چې تېرو قرنونو کې اهل سنت لدې طائفې نه لیدلي، له بل چا یې ندي لیدلي.

همدوی دي چې صحابه کرامو ته توهین کوي، دارنګه یواځینی هغه لښکر چې صلیبي ځواکونو ته د امریکا په رهبری ترټولو بااعتماده دی همدا شیعه ګان دي، هغه وحشیانه ظلمونه چې د ښښلو وړ ندي همدې طائفې له اسلامي امت سره په عراق، سوریه، یمن، فلسطین او نورو ملکونو کې وکړې، په هېڅ چا پټ ندي. لیکن ددې ټولو باوجود، د افغانستان

اسلامي امارت د شيعه ګانو مرکز ايران سره د همپيمانۍ او دوستۍ اعلانونه وکړل.

۷- په ۲۰۰۱ ميلادي کال کې د کوکنار کښت او قاچاق د اميرالمؤمنين ملا محمد عمر لخوا ممنوع اعلان شو، ليکن وروسته لدې کال نه تر اوسه د افغانستان اسلامي امارت هېڅکله خلک ددې له کښت او قاچاق نه ندي منع کړي، برعکس ددې له کروندګرو نه عشر او زکات اخلي.

۸- د ۱۴۳۵ هجري قمري په رمضان المبارک مياشت کې د عراق او شام مجاهدينو په لاس ښکاره او غټ فتوحات وشول، او پدې وتوانېدل چې اسلامي خلافت چې له يو قرن نه ډېر ورک و، اعلان کړي.

په ډېر کم وخت کې د مصر، ليبيا، نايجريا، يمن، خراسان، قفقاز او نورو ساحو مجاهدينو له اسلامي خلافت سره بيعتونه وکړل، او څه ساحې يې د اسلامي خلافت ولکې لاندې راوستې، ليکن د اسلامي امارت موقف ددې تحولاتو په نسبت چې د امت د خوشحالۍ سبب وګرځېد، ډېر خفه کوونکی دی. له جملې دې نږدې وختونو کې، د افغانستان اسلامي امارت هغو مجاهدينو سره چې اسلامي خلافت سره يې په خراسان ولايت کې بيعتونه وکړل، مسلحانه جګړه پيل کړه. ولې د افغانستان اسلامي امارت د اسلامي خلافت پرمقابل کې جنګ يې د خپلو جنګونو

د هرې زمانې با احساسه علماؤ او داعیانو په دې برخه کې خپل مسؤلیت اداء کړی او اسلامي امت یې ترې خبر کړی، مسلمانانو هم د خپل ایمان د ساتلو لپاره د هغوی احسان منلی او له هغه جاهلیتونو او کفرونو یې په کلکه ځان ساتلی او دښمني یې ورسره کړې. په دې زمانه کې تر ټولو کفرونو او جاهلیتونو خطرناک جاهلیت او کفر سیکولریزم(علمانیت،لادینیت،بې دیني) ده. چې د نورو با احساسه داعیانو تر څنګ یې مجاهد شیخ مقبول[تقبله الله] په اړه تر خپل توانه امت ته معلومات ورکړي او له دغه جاهلیته یې خبر کړي نور نو د خلکو مسؤلیت دی چې ځان پرې څنګه پوه او وساتي او نورو ته یې هم ورسوي؛ که نه نو یو سړی به خوشاله وي چې زه خو تر ټولو کلک مومن او مسلمان یم خو په منځ کې به له ډېرو عقیدوي انحرافاتو سره مخ وي چې هم به یې دنیا خرابه او هم آخرت.

د دغه (سیکولریزم) یو مهم رکن وطنیت(وطنپالنه) دی چې هر مسلمان باید پرې ځان پوه کړي او ورسره هرډول مقابله وکړي. لومړی به یې وپېژنو چې دا څنګه جاهلیت دی؟ له تعریفه به یې پیل کړو.

### د وطنيت(وطنپالنې) تعريف:

د انگرېزانو له خوا د نړۍ هغه وېش او تقسيم قبلول چې هغوی د مختلفو ملکونو په نوم سره جلا او بېل کړي، سرحدات او حدودات يې ورته تعين کړي او ملل متحد(ملگرو ملتونو) ورته رسميت ورکړی دی، او ورسره د هغو قوانينو منل چې ملل متحد د وطنيت لپاره ټاکلي او وضع کړي، لکه: د دغه وطن اوسېدونکی ورور او خپل گڼل اگر که کافر او مرتد هم وي او د بل وطن ښه مومن مسلمان پردی گڼل په دې وجه چې هغه دده له هغه جغرافيوي حدودو څخه نه دی چې انگرېزانو او ملل متحد ټاکلي او رسمي کړي. ددغه هېواد د سرحداتو ساتل له هر بهرني نه، که مومن وي که کافر، د همدغه حدوداتو د آزادۍ لپاره جنگ کول اود نورې اسلامي نړۍ فکر نه کول، اگر که دا جنگ د جهاد په نوم هم وي خو چې تر همدغه جغرافيې محدود وي نو د وطنيت لپاره جنگ دی. په همدې ډول له دې هېواده بهر مسلمانان دې ملک ته د داخلېدلو لپاره بايد پاسپورټ او ويزه واخلي که نه مجرم دی او نور...

### د اسلام او وطنيت ترمنځ فرقونه:

اسلام او وطنيت سره مخالف دي او ټکر کې دي، وطنيت يوه کفري او غير اسلامي عقيده ده، ځکه چې له اسلام سره له څو اړخونو تضاد لري. چې په لاندې فرقونو يې وضاحت کوو:

#### *د اسلام او وطنيت لومړی فرق:*

د وطنيت عقيده مثل دا معنا لري چې انګريزان او ملل متحد د ځمکې مالکان او واکداران دي، ځکه چې هغوی هرډول وغواړي او کومه اندازه ځمکه يې چې خوښه شي، د خلکو ترمنځ د يو ملک او وطن په نوم تقسيموي او خلک بايد دا ويش ومني. هرچا چې دا ويش ومانه نو ده ملل متحد او انګريزان د ځمکې واکداران او مالکان قبول کړل، ځکه که مالکان يې نه بللی نو څنګه يو بې واکه سړی د بل چا ځمکه په خلکو تقسيموي او هغه يې بيا مني. مثلا که يو څوک راپاڅيږي او د يو بل سړي ځمکه په خلکو تقسيموي نو خلک به وايي چې دا سړی لېونی دی چې پردی ځمکه په خلکو تقسيموي او که يې ويش مني نو بيا خو يې معنا داده چې دی دا سړی د هغه بل چا د ځمکې مالک بولي. که نه نو ولې يې ويش مني، مثل خو لا پرېږده چې بيا د همدې لپاره هم ځان او هم نور وژني. نو ددې عقيدې او نظريې قبلونکی په دې سره کافر او مرتد ګرځي؛ ځکه چې د ځمکې مالک او واکدار خو الله تعالی دی لکه په قرانکريم کې

چې الله تعالی فرمايي: قُلِ اللَّهُمَّ مَالِكَ الْمُلْكِ [آل‌عمران: ٢٦] ووايه ای الله! د ټولو ملکيتونو مالک ته يې. بل ځای فرمايي: وَلِلَّهِ مُلْكُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ [آل‌عمران: ١٨٩] د آسمانانو او ځمکې څښتن الله تعالی دی.

نو د وطنيت عقيده قبلول د ځمکې مالک ملل متحد او انګرېزان قبلول او منل دي، ځکه خو د دې عقيدې منونکی د هغوی وېش ته غاړه ږدي او قبلوي يې چې همدا کفر او د اسلام خلاف عقيده ده.

نو د افغانستان، پاکستان، ايران، عراق، يمن، سعودي او نورو ملکونو هغه جغرافيوي حدود قبلول چې انګرېزانو تعين کړي دي او د همدې په حدودو کې جنګ کول او د همدې لپاره پاليسي جوړول د وطنيت عقيده منل دي.

### د اسلام او وطنيت دوهم فرق:

وطنيت ځکه کفر دی چې دا د يوې اساسي اسلامي عقيدې سره چې اسلامي اخوت او ورورولي ده، مخالفت لري او په ټکر کې دی. د اسلامي اخوت په اړه د قرآن او حديث ډېر نصوص موجود دي چې مونږ يې د نمونې په ډول يو آيت او يو حديث را اخلو.

الله تعالی فرمايي: إِنَّمَا الْمُؤْمِنُونَ إِخْوَةٌ [الحجرات: ١٠] يقينـا مومنـان سره ورونه دي.

او د ابو هريرةﷺ په حديث شريف کـې راځـي:.. المسلم اخوالمسلم لايظلمه ولايخذله ولايحقره... [28]

نو په اسلام کې مومن او مسلمان د يوبل ورونـه دي اگـر کـه د بل ځای او وطن وي او کافر د مسـلمان دښـمن دی اگـر کـه د خپل وطن يې وي او يا يې له يوې مور او پلاره هم وي، بيا يـې هم ورور نه، بلکې دښمن يـې دی. خـو پـه وطنيـت کـې د هغـه وطن او ملک خلک سره ورونه دي چې انگرېزانو يـې سرحـدات ټاکلي وي، اگـر کـه هغـه هنـدو، يهـودي، نصرـاني، سـيک او يـا سيکولر او علماني ولې نه وي، پـه وطنيـت کـې سره ورونـه بلـل کېږي. ددې مثالونه ډېر زيات دي چې افغانان سره ورونـه دي، يا ايرانيان، پاکستانيان او نور خپل منځ کې سره ورونـه دي. پـه دې کې د کافر او مسـلمان تفکيـک نشـته نـو پـه دې وجـه هـم وطنيت له اسلام سره ټکر لري او يوه کفري عقيده ده.

[28] رواه مسلم

### د اسلام او وطنیت ترمېنځ فرق:

په وطنیت کې ولاء او براء(دوستي او دښمني) د وطنیت لـه کبله کېږي، هغه څوک په وطنیت کې دوست بلل کېږي او ورسره دوستي کېږي چې د هغه وطـن اوسـېدونکی وي چـې سرحـدات یې انګرېزانو ټاکلي وي اګر که هـر قسـم کـافر ولـې نـه وي او هغه څوک پردی دی او ورته د دښمن په سترګه کتل کېـږي چـې د دغه وطن اوسېدونکی نه وي اګر چې هرڅومره اوچت مـومن او مسلمان هم وي. خو په اسـلام کـې ولاء او بـراء د ایمـان او اسلام لـه کبلـه کېـږي، مسـلمان او مـومن بـه لـه مومنـانو سره دوستي کوي اګر که د هر ځای وي او که چا له مومنانو پرته له بل چا سره دوستي وکړه د همغوی له ډلـې دی او کـافر شـمېرل کېږي. لکه الله تعالی چې فرمايي: يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَتَّخِذُوا الْيَهُودَ وَالنَّصَارَىٰ أَوْلِيَاءَ ۘ بَعْضُهُمْ أَوْلِيَاءُ بَعْضٍ ۚ وَمَن يَتَوَلَّهُم مِّنكُمْ فَإِنَّهُ مِنْهُمْ ۗ إِنَّ اللَّهَ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الظَّالِمِينَ ﴿ ٥:٥١ المائده﴾.

ژباړه: ای مومنانو يهـود او نصـارا پـه دوسـتۍ مـه نيسـئ، دوی ځيني د ځينو نورو دوستان دي او چا چې له تـاسي نـه لـه دوی سره دوستي وکړه نو يقينا دا سړی د هغوی له جملې وګرځيـد او الله تعالی ظالم قوم ته هدايت نه کوي.

بل ځای د مومنانو د ولایت او دوستۍ په اړه الله تعالی فرمایي: وَالْمُؤْمِنُونَ وَالْمُؤْمِنَاتُ بَعْضُهُمْ أَوْلِيَاءُ بَعْضٍ [التوبة: ٧١] ژباړه: مومنان سړي او مومنانې ښځې، د یوبل دوستان دي.

خو په وطنیت کې دوستي او دښمني د هغه وطن له کبله کېږي چې انګرېزانو تعین کړی وي، د تعلقاتو او اړیکو بنیاد وطن وي خو په اسلام کې دوستي او دښمني د اسلام له کبله کېږي، د اړیکو بنیاد پکې اسلام وي نه وطن.

### د اسلام او وطنیت ځلورم فرق:

په اسلام کې اقدامي جهاد فرض دی، کله یې چې هیڅوک نه کوي نو بیا په ټولو فرض عین دی او که یوه ډله یې کوي نو په نورو فرض کفایي دی. کله یې چې دومره مسلمانان کوي چې ورته کافي وي نو بیا په همدوی فرض عین دی او نور خلک یې په نه کولو نه ګناهګارېږي خو د وطنیت، سیکولر قانون او عقیدې مطابق اقدامي جهاد حرام او دهشتګردي ده. نو اوس یو وضاحت او هغه دا چې اقدامي جهاد په اسلام کې فرض او د ملل متحد او وطنیت په قانون کې حرام دی چې د اسلام په مقابل کې قانون دی. یعنې دا فرض عمل یې مباح هم نه دی ګرځولی بلکې مکمل یې حرام کړی دی.

هغوی خو هسې هم کافر دي، خو چې په مسلمانانو کې ځوک دا قوانین مني نو هغوی هم په دې کافر ګرځي. که يو حکومت وي نو حکومت کافر دی، او که خلک وي نو خلک کافر دي. خوچې چا ته دا پته وي نو هغوی بيا په دې غلط فهمۍ کې لوېدلي چې اقدامي جهاد خو د ملل متحد او وطنيت قانون کې منع دی خو دفاعي جهاد پکې جائز دی.

دا ډېره غټه غلطي ده، ځکه چې د ملل متحد او وطنيت قانون کې دفاعي جنګ جائز دی خو څه شي نه دفاع؟ له هغو حدود نه دفاع چې انګرېزانو ټاکلي او ملل متحد رسميت ورکړی، له سيکولر وطن نه دفاع هغوی جايز کړې ده، نو دا دفاع اصل کې سيکولرېزم نه دفاع ده؛ نه له اسلامي وطن نه دفاع، نو دا جنګ د سيکولرېزم جنګ دی نه جهاد. اګر که ډېر خلک په دې کې خطا شوي دي. مثال يې په 1965 ميلادي کې د پاکستان او هندوستان جنګ دی. دا خو د کفر او اسلام جنګ نه و، بلکې سيکولر جنګ و، ځکه چې دا د دوه وطنپالو جنګ و، ځکه چې يو خوا هم وطنيت پرستان ول او بل خوا هم. همدارنګه د عربو او اسرائيلو جنګ، د کفر او اسلام جنګ نه بلکې د قوميت جنګ و. تردې حده چې چا به د تکبير آوازونه کول نو هغوی ته به يې ويل چې مونږ خو څه جهاد نه کوو، بلکې دا د قوميت جنګ دی

او پکې مړو شویو ته چا شهید هم نه ویل. لکه په پاکستان کې ځینې تنظیمونو لکه لشکر طیبه، جیش محمد، حرکت المجاهدین، حزب المجاهدین او بدر مجاهدین د هند او پاکستان تر منځ جنګ ته جهاد وایي، حال داچې دا قومي او وطني جنګونه دي. نو په ملل متحد کې چې کوم دفاعي جنګ جائز دی نو هغه د وطن له هغې ټوکړې(برخې) نه دفاع جائز ده چې انګرېزانو ټاکلې ده او ملل متحد رسمي کړې ده نو دا سیکولر حدود دي او ترې دفاع جهاد نه دی.

اسلامي حدودو نه دفاع او اسلامي وطن نه دفاع، ملل متحد دهشتګردي او ترهګري بولي او هیڅکله جواز نه ورکوي، بلکې حرامه یې ګرځولې او کونکی یې مجرم بولي. په داسې حال کې چې په اسلام کې له اسلامي وطن نه دفاع فرض عین ده. نو دا خبره غلطه ده چې څوک وایي چې ملل متحد اسلامي دفاعي جنګ جائز بولي، بلکې هغوی سیکولر دفاعي جنګ جائز ګڼي. نو که مونږ چېرته له اسلامي ملک نه دفاع کوو نو له اصلي کافر، مرتد او غیر اسلامي قوانینو او دینونو نه به یې پاکوو، که نوی کفر(سیکولرېزم) وي او که زاړه کفري دینونه وي؛ نو یوازې له اصلي کافرو نه د اسلامي ملک پاکول آزادي نه ده.

### د اسلام او وطنیت پینځم فرق:

په وطنیت کې په ښکاره کفر او اسلام برابر دي خو په حقیقت کې یې کفر ته په اسلام برتري ورکړې ده، اګر که کفر او اسلام برابرول هم کفر دی خو په ظاهر کې یکې کفر او اسلام برابر معلومېږي خو په حقیقت کې یې کفر ته په اسلام باندې ترجیح ورکړې ده. ځکه په کوم ملک چې سیکولریزم او وطنیت حاکم وي نو هغوی په خپلو ملکونو کې د اسلام او نورو زړو مذهبونو اجتماعي احکام معطل کړي دي، هغه یې حرام او ممنوع ګرځولي او په هغې باندې عمل کول یې دهشتګردي ګرځولې ده. د اسلام او زړو دینونو په ځای دوی اجتماعي احکام د سیکولر مذهب چلوي. دغه راز په معاشرتي ژوند کې یې هم د حاکمیت حق خپلمنځي رضامندۍ ته ورکړی، او په معاشرتي ژوند کې یې هم ستا دین خراب کړی خو ته پرې نه یې پوه شوی. پاتې شو شخصي ژوند نو په شخصي ژوند کې یې د اسلام او نورو زړو دینونو شخصي احکام سره یو شی ګرځولي دي.

له اسلام سره یې سیکولریزم نه دی برابر کړی، بلکې په سیاسي او اجتماعي ژوند کې یې اسلام معطل کړی او سیکولریزم او وطنیت یې ورباندې لپاسه کړی دی خو په شخصي ژوند کې یې

اسلام او زاړه مذاهب سره برابر کړي دي. په شخصي ژوند کې يې اسلام له نورو مذهبونو سره په ممنوعيت کې هم برابر کړي او په اجازت کې هم. مطلب دا چې په سياسي او معاشرتي ژوند کې يې اسلام او زاړه مذاهب ممنوع کړي دي او په شخصي ژوند کې يې ورته يو قسم اجازت ورکړی دی. نو يو کفر(سيکولريزم) ته يې په اسلام باندې فوقيت ورکړ اوله نورو زړو کفرونو سره يې يو شان کړی. حال دا چې اسلامي عقيده داده چې خالص اسلام حق دی او نور ټول دينونه باطل دي:

﴿إِنَّ الدِّينَ عِندَ اللَّهِ الْإِسْلَامُ﴾ [آل‌عمران:۱۹]

او: ﴿وَمَن يَبْتَغِ غَيْرَ الْإِسْلَامِ دِينًا فَلَن يُقْبَلَ مِنْهُ وَهُوَ فِي الْآخِرَةِ مِنَ الْخَاسِرِينَ﴾ [آل‌عمران: ۸۵]

دغه راز: ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا ادْخُلُوا فِي السِّلْمِ كَافَّةً﴾ [البقرة:۲۰۸]

په همدې ډول: ﴿فَمَاذَا بَعْدَ الْحَقِّ إِلَّا الضَّلَالُ﴾ [يونس: ۳۲]

له حق اخوا خو خالصه ګمراهي پاتې ده، يوازې اسلام حق دی او نور چې څومره دينونه دي، قوانين دي او که نظامونه دي، ټول باطل دي، دا اسلامي عقيده ده. خو د وطنيت عقيده داده چې پوره حق وطنيت او سيکولريزم دی او له دې نه اخوا د نورو دينونو انفرادي او شخصي احکام چې سيکولريزم او

وطنيت سره ټکر نه لري، نه حق دي او نه باطل. نو هغه څوک چې يوازې اسلام حق بولي او هغه څوک چې سيکولرېزم او وطنيت حق بولي او په انفرادي او شخصي ژوند کې اسلام له نورو کفري دينونو سره يو شی بولي نو آيا دا دواړه يو قسم مسلمانان کېدای شي؟

که چېرته دا دواړه يو شی کېدای شي نو ددې دا معنا ده چې مسلمان او هندو هم يو شی کېدای شي، حال دا چې سيکولرېزم او وطنيت له هندويت نه هم ډېر باطل دين دی. دا خو د اسلام او کفر برابري ده، نو د مسلمان او کافر برابري ترې هم پخپله ثابتېږي، چې همدا کفر دی. اسلامي عقيده خو داده چې مسلمان او کافر برابر نه دی، بلکې مسلمان ښه دی او کافر بد: (أَفَنَجْعَلُ الْمُسْلِمِينَ كَالْمُجْرِمِينَ) [القلم: ۳۵]

د وطنيت په قانون کې چې څوک تذکره او شناخت کارډ لري نو دا ټول خلک په هر شي کې سره برابر دي، بلکې ورونه دي. د دوی د تعلقاتو بنياد وطن او وطنيت دی، يعنې وطني قانون کې ورور هغه دی چې وطن او وطنيت مني او اسلام کې ورور هغه دی چې اسلام مني.

له پورته دلایلو معلومه شوه چې اسلام او وطنیت دوه متفاوتې عقیدې دي چې هیڅکله په یو تن کې سره نه جمع کېږي. یا به یو سړی مسلمان وي، په اسلام به ایمان لري او یا به وطنیت پرست وي، په علمانیت به یې ایمان وي، مرتد او کافر به وي. نو اسلام او وطنیت، اور او اوبه دي چې هیڅکله سره نه یو ځای کېږي.

اسلامي امت ته په کار دي چې له دغه جاهلیته ځان خبر کړي چې عقیده یې سالمه او روغه پاتې شي که نه نو دی به په بله لار روان وي او په ځان به د یو ښه مسلمان گومان کوي. الله دې وکړي چې مونږ هم له وطنیت نه ځان وساتو او نور هم ترې خبر کړو چې له دغه جاهلیته ځان وساتي.

یو بله مهمه موضوع چې د اسلامي وطن او دغه وطنیت تر منځ فرق دی نو ښه به وي چې دا هم روښانه شي، ځکه چې په اسلام کې خو له وطن نه دفاع جهاد بلل کېږي خو آیا دا وطن چې انگرېزانو یې حدودات ټاکلي همدا هماغه اسلامي وطن د دی چې دفاع ترې جهاد بلل کېږي؟

کله چې مونږ د اسلامي او سیکولر وطن تر منځ په فرق او توپیر پوه شو نو دا شبهه به خپله حل شي چې د کوم وطن نه دفاع او له چا نه یې دفاع جهاد بلل کېږي؟

## اسلامي وطن او سيکولر وطن کې فرق:

### لومړی:_ اسلامي وطن

اسلامي وطن هغه دی چې جهاد او مجاهدينو او اسلامي نظام يې مونږ ته سرحدات ټاکلي وي يعنې مجاهدينو جهادونه کړي او تر هغه ځای پورې يې اسلامي نظام قايم کړی، نو هغه زمونږ اسلامي وطن دی.

زمونږ د اسلامي وطن حدودات يا دېوالونه له اندلس يا جنوبي فرانس نه ونيسه تر جنوبي افريقې پورې، له جنوبي افريقې نه نيولې تراندونېزيا پورې. بل دېوال يې تر شرقي ترکستان پورې چې په اوسني چين کې دی چې هغوی ورته د سينگيانگ (نوي ښار) نوم ورکړی دی. يو بل ستر دېوال يې تر تاجکستان، ازبکستان، آذربايجان او چې ددې مينځ کې کوم ملکونه دي، همداسې تللی تر ترکو پورې، چيچنيا او داغستان ته هم ورتاو شوی دی اوبيا له ترکو نه يو دېوال په شام باندې ورغلی دی. په منځ کې چې کوم ملکونه دي، افغانستان، پاکستان، او د عربو ملکونه دي چې دا زمونږ اسلامي وطن دی. چې يو سرحد يې له اصلي کافرو سره په جنوبي فرانس، بل سرحد يې له اصلي کافرو سره اندونېزيا يا جنوبي افريقا او اندونېزيا دواړو کې د

استرالیا او افریقې چې کوم کفري ملکونه دي. او شرقي ترکستان کې چین سره او په منځ کې چې کوم ملکونه دي هغه زمونږ اسلامي وطن دی او عملا پرې د مسلمانانو نظام او خلافت تېر شوی دی.

دې سره زمونږ دا شرعي حکم تړلی دی چې کله د مسلمانانو یوه لوېشت خاوره د کافرو په لاس کې وي نو جهاد په مسلمانانو داسې فرض دی لکه چې څرنګه پرې مونځ فرض دی. ځکه چې په دې وخت کې دا دفاعي جهاد دی اګر که شکل یې د اقدامي جهاد ولې نه وي. تر څو چې مونږ دا آزاد کړی نه وي نو په مونږ جهاد فرض عین دی خو آزادوو به یې له څه شي؟

له یو شي نه آزادول دي، که څه هم چې نومونه یې بدل دي. له کافرو، مرتدینو او غیر اسلامي نظام او قانون نه، که زوړ وي او که نوی، یعنې سیکولریزم نه.

ډېر خلک په دې غلط فهمۍ کې لوېدلي دي، کله چې دوی د مستعمره شویو ملکونو نومونه ذکر کوي نو اول د کشمیر، فلسطین یادونه وي، ځکه چې ددې د آزادولو لپاره جنګ د ملل متحد له خوا هم جائز جنګ بلل کیږي، چې لږ نور راښه شي نو بیا ورسره اندلس او شرقي ترکستان هم ذکر کوي. چې لږ نور

هم راښه شي نو بیا ورسره چیچنیا او افغانستان هم ذکر کوي، نور نه ذکر کوي، یعنې لږ تر لږه پاکستان او سعودي نه ذکر کوي، په داسې حال کې چې دا هم مقبوضه او مستعمره دي.

ددې غلط فهمۍ اصلي وجه داده چې دوی یوازې له اصلي کافرو نه ملک آزادولو ته آزادي وایي. دوی وایي چې سعودي کې اصلي کافر نشته، پاکستان کې اصلي کافر نه شته. افغانستان نه هم په وتو دي نو دې غلط فهمۍ کې دوی اخته دي. ځکه چې اصلي کافر خو ورنه تللي دي نو دا خو آزاد دي. ځینې خلک د غلط فهمۍ له وجې نه دا کار کوي او ځینې نور یې بیا قصدا هم کوي؛ ځکه چې دا خبره له سیکولر وطنیت سره برابره ده. په سیکولر وطنیت ایمان لرونکي خلک ورته د وطن لپاره د جنګ نوم ورکوي او ځینې نور ورته د له اسلامي ملک نه د دفاع نوم ورکوي، مقصد یو شی دی خالص نومونه بدل دي.

لکه چې په افغانستان کې ځینې بې ځایه غیرت کوونکي خلک راپاڅیږي چې مونږ خپل ملک آزادوو، که له امریکایانو وي او که له مسلمانانو، مونږ ترې خپل ملک آزادوو. همدا کار د افغانستان طالبان هم کوي او دېته له اسلامي ملک نه د دفاع نوم ورکوي. ددوی جنګ هم تر افغانستان پورې محدود دی

چې د دواړو مقصد يو دی، فقط نومونه يې بېل دي. نو دا په اصل کې د سيکولر وطنيت جنګ دی، که څوک پوهېږي هم د همدې لپاره جنګېږي او که څوک نه پوهېږي هم د همدې لپاره جنګ کوي.

حقيقت همدا دی ځکه چې دوی د اصلي کافر قبضې ته قبضه وايي او د مرتدينو او غيراسلامي قوانينو قبضې ته قبضه نه وايي، ځکه چې مرتد خو وطني دی. نو د سيکولر وطن لپاره جنګېدونکي او د اسلامي ملک نه د دفاع په نوم جنګېدونکي دواړه د يو مقصد لپاره جنګېږي ځکه چې د مرتدينو قبضه، دوی قبضه نه بولي. په داسې حال کې چې د مرتدينو قبضه له اصلي کافرو نه سخته ده. دغه راز دوی د کفري قوانينو قبضې ته هم قبضه نه وايي.

که چېرته دا کوم امريکايان چې په افغانستان کې دي، دوی مسلمانان شي او له مونږ سره اسلامي نظام ومني، نو بيا دوی په اسلامي قانون کې زمونږ ورونه دي، که چېرته کوم صلاحيت پکې وي، کېدای شي چې ځينې منصبونه هم ورته وسپارو. خو د وطنيت قانون هم تاته دا اجازه درکوي؟

نه هيڅکله نه، ځکه چې دوی خو بيا وايي چې دا بهرنی دی.

دا ځينې شاعران کمبختان هم دا اصطلاحات ذکر کوي؛ خپلواکي، بهرنيان او خارجيان. نو دا ټول سيکولر اصطلاحات دي، له دې نه ځان ساتل په کار دي. نو اصل قبضه خو د نظام، مذهب او قانون ده، ځکه چې دا کافر خو مونږ سره پاتې کېدای چې کله له مونږ سره اسلامي قانون او مذهب ومني او مسلمانان شي لکه چې الله تعالی فرمايي: ﴿فَإِن تَابُوا وَأَقَامُوا الصَّلَاةَ وَآتَوُا الزَّكَاةَ فَإِخْوَانُكُمْ فِي الدِّينِ وَنُفَصِّلُ الْآيَاتِ لِقَوْمٍ يَعْلَمُونَ﴾ [التوبة: ١١].

اسلام وايي چې د هرې ځمکې او هر نژاد وي خو مسلمانان وي نو ورونه مو دي، او که خپل ورور مو مرتد او کافر وي هغه زمونږ ورور نه دی، خو وطنيت وايي چې د خپل وطن کافر دې هم ورور دی او د بل وطن مسلمان پردی دی. نو د اسلامي وطن او سيکولر وطن نظريو کې دا فرق دی.

### دوهم:_ سيکولر وطن

سيکولر وطن هغه دی چې انګرېزانو ورته حدود ټاکلي دي چې له دې ځای نه تر دې ځايه پاکستان شو، له دې ځايه تر هغه ځايه افغانستان او همداسې نور ملکونه او ملل متحد ورته رسميت ورکړی.

کله چې څوک سیکولر او اسلامي وطن نـه پېـژني، نـو پـه غټـه غلط فهمي کې غورځېږي؛ ځکه کله چې ستا اسلامي ملک قبضه شي نو په تا جهاد فرض عین گرځي، نو د پاکستان علماء وایـي چې که د پاکستان یوه لوېشت هم درنه افغانستان یا هند ونیسي نو بیا په تا جهاد فرض عین گرځي، او د افغانستان علماء وایـي چې که افغانستان درنه ونیول شي نو جهاد دربانديې فرض عـین گرځي. د سعودي او نورو ملکونو علماء همداسې.

حالانکه دا اسلامي حدود نه دي، بلکې سیکولر حـدود دي چـې ددې د حفاظت اجازت سیکولرېزم تاتـه درکـړی دی. دا خـو تـه اصـل کـې د سـیکولرېزم حفاظـت کـوې، نـه داسـلامي وطـن. ځکه چې اسلامي حدودو خو تر دې ځای پورې نه دي چـې تـر کوم ځایه پورې ته جهاد فرض عین بولې.

مونږ اوس که د یوې وړې سیمې حفاظت کوو نو دا په دې خاطر چې درجه پـه درجـه بـه مخکـې ځـو، تـر څـو چـې ټولـه اسلامي خـاوره آزاده کـړو. لـه هغـې نـه وروسـته زمـونږ جهـاد اقدامي جهـاد دی. خـو ترهغـې پـورې مـونږ پـه دفـاعي جهـاد بوخت یو.

خو که څوک د ټول پاکستان یا افغانستان حفاظت کـوي نـو دی بیا هم سیکولر حدود ساتي او له هغې مخکې نه ځي.

کوم خلک چې خطا شوي هغوی د سیکولر وطن تر حدودو جهاد فرض عین بولي او آزادي هم یوازې له اصلي کافرو نه آزادۍ ته آزادي وایي؛ که نه نو دا اویا ۷۰ کاله به مونږ پاکستان ته اسلامي ملک نه ویلی. افغانستان، سعودي او نورو ملکونو ته به مو اسلامي نه ویلی. نو سیکولر وطن هغه دی چې انګرېزانو د هغې حدود مقرر کړي وي او ملل متحد ورته رسمیت ورکړی وي او اسلامي وطن هغه دی چې جهاد مونږ ته د هغه حدود مقرر کړي وي، یعنې جهادونه تر هغه ځایه شوي دي او اسلامي دولت ګرځېدلی وي.

یو خبره ضروري خبره دا چې په کوم ځای کې اوس شریعت نافذ وي، په مونږ اول د هغه اسلامي وطن حفاظت لازم دی چې چېرته خلافت او شریعت نافذ وي، ځکه چې دلته هم د اسلامي وطن حفاظت دی او هم د شریعت حفاظت، او چې په کوم ځای کې شریعت نه وي نافذ نو هلته یوازې د اسلامي وطن حفاظت دی نو په داسې حال کې به مونږ اولویت د شریعت او اسلامي وطن دواړو حفاظت ته ورکوو.

د جاهلیت په زمانه کې د ټولو قومونو دا فکر و، چې ځانونه یې له نورو قومونو څخه غوره او بهتر ګڼل، خو چې کله نبي ﷺ

مبعوث شو بیا له مسلمانانو پرته د ټولو قومونو د وطن پرستۍ او قوم پرستۍ سوچ او فکر و.

نو د اسلام له راتګ سره دا جاهلیتونه ختم شول او مسلمانانو د اسلام په سر دوستي او دښمني کوله، د اسلام په بنیاد به یې له یو بل نه دفاع کوله، او د اسلام په سر به یې جهادونه کول...

خو د وخت په تیرېدو سره همدا مرضونه بیا راوپارېدل، بلکې حتی اوس لږ مخکېوالۍ پکې شوی چې قوم پرستۍ ترڅنګ وطنیت پرستي هم شروع شوې، اوس یو قوم بل قوم نه ځان غوره ګڼي، یو وطن بل وطن نه ځان غوره ګڼي او...

خو مسلمانانو ته پکار ده لکه خپلو اسلافو غوندې د اسلام په سره هرڅه برابر کړي، بنیاد د دوستۍ او دښمنۍ اسلام وګرځوي، چې همدا سپېڅلې پاکه عقیده د اسلام ده.

د نړۍ کافرانو او ملل متحد په وړاندې اوس که یو مسلمان له وطنیت پرستۍ نه انکار وکړي نو هغه ته بیا دا شخص مجرم دی. دوی ته بیا انسان هم نه ښکاري، ځکه دوی وایي چې دهشتګرد له سره انسانان نه دي. هغه دا وجه ده چې دوی سیکولریزم ته انسانیت وایي او څوک چې ددوی حدود ونه مني نو دوی یې بیا انسان هم نه بولي خو په حقیقت کې دوی

پخپله لـه حیوانـاتو هـم بـدتر دي اللـه تعـالی فرمـایي: ﴿أُولَٰئِكَ كَالْأَنْعَامِ بَلْ هُمْ أَضَلُّ﴾ [الأعراف: ١٧٩]. دوی د حیواناتو په څېر دي بلکې دوی ډېر گمراه دي.

د وطنیـت منـل، د اسـلامي عقیـدې ولاء او بـراء، دوسـتۍ او دښمنۍ نه انکار کول دي. یو طرف ته د لا إلـه إلا اللـه کلمـه ده چې د اسلامي تعلقاتو بنیاد دی او بل طرف تـه د وطنیـت کلمـه ده چې د سیکولر مذهب په اساس د تعلقاتو اصلي بنیاد دی. نو زمونږ او د کفارو د تعلقاتو بنیادونه سره جدا دي.

نو الله دې وکړي چې د وطنیت په دې نوي جاهلیت هغه مسلمانان پوه شوي وي چې تر اوسه پرې نه پوهېدل او دا فکر باید مونږ تر نورو مسلمانو هم ورسوو چې هغوی هم ترې ځان وساتي.

د وطنيت(وطنپالنې) په اړه په تېر بحث کې معلومات وړاندې شول اوس دلته يوازې د طالبانو د وطنيت پرستۍ ځيني مثالونه وړاندې کوو چې دوست او دښمن د طالبانو د جنګ په حقيقت ښه پوه شي.

دا خبره هم ددې لپاره کافي ده چې دوی په وطنيت ايمان لري او پرې معتقد دي چې ددوی امارت يوازې د افغانستان لپاره غواړي. خو دوی د کوم افغانستان لپاره امارت غواړي؟

آيا دا هغه افغانستان نه دی چې انګرېزانو يې حدود ټاکلي دي؟

آيا دوی د هغه افغانستان د آزادۍ لپاره نه جنګېږي چې دانګرېزانو يې پولې تعين کړي دي او ملل متحد رسمي کړي دي؟

آيا ددوی جنګ او پاليسي د افغانستان تر هغې جغرافيې پورې محدوده نه ده چې ملل متحد رسميت ورکړی؟

آيا ددوی نظمونه او شعرونه د افغانستان تر ستاينې محدود نه دي او د همدې ځای د جنګياليو د غيرت کيسې نه کوي؟

د نمونې په ډول دوی يو ساعته وېډيو(د غازيانو کاروان 12) د وطنيت په يو نظم پيل کېږي:

دا افغانستان دی د باتورو ننګیالو وطن

تل مو دی ساتلی د نیکونو اوپلرو وطن

آیا دوی په دې فخر نه کوي چې دوی په جنګ کې افغانان ژغوري اګر که هرڅومره غټ کافر ولې نه وي او خارجي کافر په نښه کوي، دا ددوی د وطنیت پرستی نمایندګي نه کوي؟

ددوی په رسمي سایت(الإمارة) کې د هغې لیکنې په یو ځای کې چې سرلیک یې دی (**دانټرکانټیننټل په برید کې د طالبانو د اخلاقي تعهد تبارُز**) د فخر په توګه لیکلي چې ددوی مجاهدینو(!) په کانټیننټل هوټل د حملې په وخت کې دا ناري وهلې چې: افغانان دې له بهرنیانو جلا شي. [29]

دوی د خپلې عقیدې پربنیاد په دې فخر کوي چې په جنګ کې خارجیان وژني او افغانان ژغوري، دا ځکه چې افغاني کافر او مرتد دوی هیڅکله هم کافر او مرتد نه بولي بلکې تل ورته د اجیر او مزدور خطاب کوي، د مثال په ډول:

[29] (د انټرکانټیننټل په برید کې د طالبانو د اخلاقي تعهد تبارُز. الاماره.)

(پرون غرمه شاوخوا ۱۱ بجې د لغمان ولايت مرکز مهترلام اړوند کتل، ميداني، نوي کلا سيمو د امريکايي اشغالگرو او داخلي مزدورو عسکرو په ګډه قوه د اسلامي امارت مجاهدينو کارنده بريدونه ترسره کړل.)

21/2/2018 ذبيح الله مجاهد / الإمارة

ددې اصلي وجه ددوی د وطنيت عقيده ده که نه نو کافر که دې ورور هم وي، کافر دی. او مسلمان د مسلمان ورور دی، اګر که د ځمکې د بل سر هم وي. خو دا ددوی د عقيدې مخالفه ده چې د نورې نړۍ د مسلمانانو غم او فکر وکړي؛ بلکې په ياده شوې ويډيو کې يو ځای په ډېرو غټو تورو ليکي:

**افغانستان ته بيا رونشئ**

ولې چې دوی خو د وطنيت عقيده لري، نه اسلامي! نو ځکه خو خارجي کافرو ته وايي چې افغانستان ته بيا رونشئ، که په نور اسلامي امت او اسلامي خاوره هر څه کوئ زمونږ درسره کار نشته، خوښه مو خپله ده.

د ملل متحد په قانون کې د وطنيت د عقيدې په اساس د هغې محدودې خاورې او وطن د ساتلو لپاره جنګ رسميت لري. دوی دا حق لري چې دا وطن ددوی په اصطلاح له بهرنيانو وساتي اګرکه مسلمان هم وي خو چې خارجي وي دی ورسره

جنګ جهاد بولي. همداسې يوه ليکنه دوی په خپل سايټ (الإمارة) کې خپره کړې وه چې په يوه برخه کې يې راغلي و:

زه خو وايم هر بهرنی که کافر دی که مسلمان چې زما د هيواد ګټې يې په خطر کې کړې زما ولس يې وژلی په وړاندې يې جهاد فرض دی او هر څوک چې زمونږ هيواد ته خير رسوي هغه مې ورور او ملګری دی.

الإمارة: د محمود مرهون ليکنه

ددوی جنګ ددوی د عقيدې(وطنيت پرستۍ) له کبله تر افغانستانه محدود دی، دوی يوازې د افغانستان لپاره جنګيږي او په نوره نړۍ کې يې له کافرو او کفري نظامونو سره څه کار نشته، بلکې له افغانستانه بهر کافرو سره د ښو روابطو غوښتونکي دي او د هغوي تعميراتي کارونو ته په افغانستان کې هرکلی وايي. د امريکايي ولس په نامه د طالبانو د رسمي وياند(ذبيح الله مجاهد) ليک ددې خبرو ښه ثبوت دی:

(له خپلواکۍ وروسته، موږ غواړو د ګاونډيانو په ګډون د نړۍ له هيوادونو سره مثبت او تعميري اړيکې ولرو او د هيواد په بيارغونه او پرمختګ کې د هغوی مرستو ته هرکلی وايو او غواړو د سيمې او نړۍ په ثبات او سوله کې رغنده رول ولوبوو.)

ددوی هر څه تر افغانستانه محدود دي، ددوی جنگ، دوستي او دښمني تر همدې وطنه پورې تړلې ده چې همدې ته وطنیت وایي.

دا چې د نړۍ کفري ملکونه له طالبانو نه د ویرې احساس نه کوي هم وجه یې داده چې هغوی پوهېږي چې طالبان په وطنیت ایمان لري او ددوی ملکونو ته ترې کوم خطر نه پیدا کېږي ځکه نو تل د مرتدینو او کافرو له رسنیو نه هم دا خبره کېږي چې طالبان صرف د افغانستان لپاره خطره دی او اسلامي دولت د ټولې نړۍ لپاره.

دارنگه ددوی ټولې بیانیې او خطابونه لدې تعصبي او تفرقه یي الفاظو څخه ډک دي: (افغان، گران هیواد، پښتون، افغانستان، قوم، ولس، خاروه، وطن ...)

حالانکه رسول الله ﷺ ددې قومیت او وطنیت له جاهلیتونو نه بیزاري اعلان کړې ده.

اوس راځو د نمونې په ډول د طالبانو هغه لیک چې امریکایي ولس او کانگرېس ته یې د خپل رسمي ویاند ذبیح الله مجاهد په ذریعه خپل رسمي ویب پاڼې نه ورساوه دلته نقل کوو تاسو یې قضاوت وکړئ.

## امریکایي ولس ته د اسلامي امارت لیک!




د طالبانو له خوا امریکایي ولس، د ولسي- خپلواکو سازمانونو غیر دولتي چارواکو او د کانګریس سوله خوښو استازیو ته لیکل شوی لیک، سر تر پایه د وطنیت له کفري او غیر اسلامي عقیدې ډک دی چې په هره جمله یې ډېرې خبرې کېدای شي خو مونږ غواړو چې په دغه اوږود لیک کې ځینو جملو او پراګرافونو ته په څه نا څه اشاره وکړو.

د دغه لیک د پیل جملې: (امریکایي ولس، د ولسي خپلواکو سازمانونو غیر دولتي چارواکو او د کانګریس سوله خوښو استازیو!

هیله مند یو چې دا لیک به په غور ولولئ او په هغه کې د لیکل شویو واقعیتونو په رڼا کې به په افغانستان کې د امریکایي ځواکونو راتلونکی او خپلې ګټې او تاوانونه وسنجوئ!)

**وګورئ هغو وحشیانو ته یې سوله خوښي ویلي چې په ټوله نړۍ کې یې په اسلامي امت قیامت جوړ کړی، که څوک ووایي چې ظلم خو یې حکومت کوي نو عوام یې ولې وحشیان دي؟**

**ددې ځواب دا دی چې په اوسنۍ کفري نړۍ کې خو حکومتونه د خلکو په لاس جوړېږي او واک د خلکو وي، ځکه خو طالبانو هم په دې لیک کې ورته ویلي چې په امریکا کې واک له خلکو سره وي، نو د امریکې وحشي- حکومت خو همدې خلکو ټاکلی، نو بیا یې تاسي څنګه سوله خوښي بولئ؟**

**دا کافر خو سوله دې ته وایي چې په ټوله نړۍ د دوی حکومت وي او څوک د دوی له قانونه سرغړونکي نه وي. که نه نو دوی چېرې په کرار کیني؟ نو تاسي دوی د کومې سولې خوښونکي بولئ(!)؟**

**آیا دا هغه سوله نه ده چې اسلام له منځه لاړ شي او په ټوله نړۍ د دوی کفر قایم شي؟**

**خو ای کشرانو طالبانو دا د همغو لیکونو لړۍ ده چې د ملا محمد عمر په نوم يې په لسګونو کلونو فرمانونو او مبارکۍ درته لیږلې، اوس همدا کسان ستاسي مشران شول او خپل دریځ پدې لیکونو کې نړیوالونو ته ښکاره کوي، دوی ډېر کوشش وکړ چې همدا په نړیوالو ومني چې دوی سوله غواړي نه جنګ!!**

**وګورئ طالبانو ستاسي مشرانو هغه کانګریس سوله خوښې نه دی بللی چې په نړۍ کې هر وحشت د دوی په اجازه او مشوره تر سره کیږي؟**

**او آیا دوی همغه امریکايي ولس نه دی مخاطب کړی چې دا وحشیان د هغوی په رایو واک ته رسېدلي؟**

**په دوهمه جمله کې وايي:** (هیله مند یو چې دا لیک به په غور ولولئ او په هغه کې د لیکل شویو واقعیتونو په رڼا کې به په افغانستان کې د امریکايي ځواکونو راتلونکی او خپلې ګټې او تاوانونه وسنجوئ!)

**دې جمله کې ستاسي مشران، امریکایان له کوم حقیقت نه خبرول غواړي؟**

**آیا همدا حقیقت نه دی چې په افغانستان کې ستاسي نماینده ګي، ستاسي په لاس جوړ شوی حکومت؛ په خپله دنده کې ناغېړي کوي، خپله دنده سمه پرمخ نه وړي او ستاسي اهدافو ته دومره ژمن نه دي لکه څومره چې ترې تاسي تمه لرئ؟**

**آیا ستاسي مشران هغوی ته د دې واقعیت ښکاره کول نه غواړي چې دلته ستاسي حکومت له مختلفو فسادونو سره مخ دی او ستاسي مقاصد سم نه پالي؟ آیا ستاسي مشران ورته دا رَسَوَل نه غواړي چې په حکومت کې مو اداري فساد، قاچاقبري او د نشه یي توکو استعمال زیات شوی او د کفري قانون حاکمیت مو له ستونزو سره مخ دی؟**

**ستاسي د مشرانو ددې خبرو دا مقصد نه دی چې راشئ دا حکومت مو اصلاح کړئ چې دا فسادونه پکې ختم شي او ستاسي په خوښه برابر نظام په پښو ودرېږي.**

**که په مطلب یې تاسي فکر نه دی کړی نو ستاسي د مشرانو د لیک هدف همدا دی چې امریکې ته وایي: ستاسي لګښت ډېر کېږي خو مقاصد مو پوره نه حاصلېږي.**

ای کشرانو طالبانو! وګورئ ستاسي مشران آیا د امریکایي ولس په هغه تاوان خپه نه دي چې په افغانستان کې د دوی شوی او کېږي؟

آیا ستاسي د مشرانو ددې لیک عمومي هدف له امریکایي ولس سره د زړه خواخوږي نه ده چې ګوندې حکومت مو په افغانستان کې ډېر تاوانونه لیدلي او ګوري یې؟ آیا ستاسي د مشرانو هدف دا نه دی چې د امریکایي ولس د تاوان نه د بچ کېدو په خاطر له افغانستانه خپل پوځیان وباسئ؟

ای کشرانو طالبانو! تاسي فکر کوئ چې هغوی د افغانستان له حالاتو دومره هم نه دي خبر، لکه څومره چې ستاسي مشران په پاکستان او قطر کې خبر دي؟

لږ له سوچ نه کار واخلئ! له کافرو سره خو څوک د الله د رضا لپاره نه ملګري کېږي، بلکې د همدې رشوت، قاچاقبرۍ او نورو بېلاریو او ساعت تېریو لپاره یې ځانونه له ایمان نه خلاص کړي. که دومره مخلصین او الله څخه ډارېدای نو جهاد به یې ورسره کړی وای. سم خلک چېرته د کافرو ملګرتیا کوي؟ همداسې کاږه، قاچاقبر او خائنان ورسره ملګرتیا کوي. تاسي دومره تشویش مه کوئ او مه دومره

**خواشيني کېږئ! ګونـدې چې امريکـايي حـربي صـليبيان غربيان به د افغانستان له حالاتو دومره هم آګاه نه وي .**

**آيـا سـتا خواخـوږي لـه اسـلامي امـت نـه ډېـره لـه کـافرو امريکايانو سره نه ده چې ورته وايـئ ددې واقعيتونـو پـه رڼـا کې خپل ګټه او تاوان وسنجوئ!**

**په هرصـورت ستاسـو مشرانو لـه دې وروسـته څـه فرمـايلي؟ وريسې جملو کـې يـې لـيکلي:** (امريکـايي ولسـه! تاسـو پـوهيږئ چـې ستاسو سياسي مشرانو ۱۷ کاله وړانـدې زمـونږ پـر هيـواد پـوځي يرغـل وکـړ. دا يرغل چې هم زمونږ د خپلواک هيواد د شرعـي او مـلي قوانينـو او هـم د نړيوالـو مقرراتو خلاف عمل و د توجيه لپاره يې ستاسي چاروآکو د نـورو پـه نسبت دغـه درې شيان په څرګنده توګه د قانوني مجوز په حيث ارائه کول:

۱ـ په افغانستان کې په اصطلاح د تروريستانو په لـه منځـه وړلـو سره د امنيـت ټينګول.

۲ـ د يوه قانوني حکومت په ايجاد سره د قانون پلي کول.

۳ـ د نشه يې توکو له منځه وړل).

**☜ طالبانو وګورئ ستاسي مشران امريکايانو تـه دا نـه وايـي چـې پـه افغانسـتان چـې تـاسي کـوم يرغـل کـړی، نـو دا د ملي(وطنيت) او د نړيوالو(ملل متحد)د قوانينو خلاف دی؟**

**آيا د وطنيت او ملل متحد قوانينو په منلو او هغوی ته يې په مخکې کولو سره دا ويل نه غواړئ چې مونږ خو دا قوانين منو خو تاسو يې نه منئ؟ بلکې تاسي خو په خپل حکومت کې څو ځلې ملل متحد نه د افغانستان لپاره رسمي څوکۍ غوښتې او دا مو ثابته کړې چې تاسي د ملل متحد قوانين منئ او دا مو ثابته کړې چې تاسي په وطنيت هم ايمان لرئ، نو ځکه خو مو له افغانستانه بهر حمله هم نه ده کړې. لکه څنگه مو چې امريکايانو ته په دغه ليک کې دا ډاډ ورکړی چې مونږ په اولسو ۱۷ کلونو کې له هېوداه بهر جهاد نه دی کړی او نه يې په راتلونکي کې اراده لرو.**

**ستاسي مشرانو ورته د کوم قانوني حکومت يادونه کړې؟ آيا د جمهوريت، وطنيت او ټول سيکولرېزم قوانين يې ورته نه دي ياد کړي چې تر اوسه مو دا نه دي عملي کړي، او هلته تکړه شئ چې دا پوره عملي کړئ!**

**د طالبانو مشرانو امريکايانو ته په ليکل شوي ليک کې د وطنيت کفري عقيدې د اظهار بې مثاله نمونې وړاندې کړي د ليک بل پراگرف په دې ډول دی:** (ټرمپ دغه ادعاء او اعتراف د تير آگست د مياشتې په ۲۳مه د افغانستان او جنوبي آسيا لپاره د خپلې جنگي

ستراتیژي د اعلانولو په مهال اعلان او ۱۷ کاله وروسته یـې یوځـل بیـا د افغـان ولس پر خلاف د ناروا اشغال او جګړې د تداوم امر ورکړ.)

☜ **په وطنیت ایمان لرونکي طالبان په دې پراګراف کې هـم خپله عقیده ښکاره کړې او یوازې پـه افغـان ولـس جنـګ یـې ناروا جنګ او اشغال بللی دی. حال دا چـې غـربي کـافرو خـو نـړدې پـه ټولـه نـړۍ خپـل نماینـده او د دوی د عقیـدې (سیکولرېزم) په بنیاد جوړ حکومتونه یې جوړ کړي خـو دوی د خپلې عقیدې وطنیت په بنیاد یوازې په افغـان ولـس حملـه جرم، ناروا او اشغال ښکاري. دوی هیڅکله هم د مسلمان ولس غم نه کوي ځکـه چـې ددوی عقیـده د وطنیـت ده، کـه نـه پـه اسلام کې خو مسلمان د مسلمان ورور دی، ټول اسلامي امـت دیو بدن حیثیت لري نو چې کـه د بـدن یـو غـړی پـه درد شي ټول بدن ورسره نارامه کېږي خو دا هلـه چـې څـوک اسـلامي امت خپل بدن وګڼي. اوسني طالبان اسلامي امـت ځکـه خپـل بدن نه ګڼي چې ددوی ایمـان پـه وطنیـت شـوی دی، خـو کـه څوک وایي چې په اسلام یې ایمان دی نه پـه وطنیـت، نـو بیـا خو په کار وه چې د مسلمان ولـس پـه غـم غمجـن وای نـه دا افغان ولس، ځکه چې په افغان ولس کې خو مرتدین، مشرکین او روافض هم موجود دي خو طالبان یې ځکه پـه اړه غمجـن**

دي چې ددوی په عقيده(وطنيت) کې د سيکولر وطن(چې انگرېزانو يې حدود ټاکلي او ملل متحد رسمي کړی وي) کې اوسېدونکي سره ورونه دي، اگر که د هرې عقيدې لرونکی وي.

نو طالبان د وطنيت کفري عقيدې له کبله يوازې د افغان ولس غم کوي، له اسلامي امت سره يې څه کار نشته، که وای نو پاکستان چې د ټولې کفري نړۍ کفرونه پکې راټول دي او د مسلمانانو سره هغه کارونه کوي چې تر ټولو سخت اصلي کافر(يهود) به يې په کولو وشرمېږي خو طالبان له پاکستان سره تړونونه کوي او کله يې په غلطۍ هم پکې کومه پټاکۍ وانه لوزوله، ځکه چې هغه خو ددوی وطن نه دی چې د اوسېدونکو او زنداني مومنانو په حال يې فکرمن، غمجن او د بدل اخيستو په موخه پکې کوم جهادي( فرض عين) فعاليت وکړي.

په موصل، رقه، حلب، خراسان د تمکين په ساحه کې چې غربي کافرو کوم وحشت او ظلم وکړ نو د طالبانو پرې يو ورځ هم طبيعت خراب نشو ځکه چې هغوی ددوی د عقيدې(وطنيت) منونکي نه دي اگر که ښه مومنان هم دي.

**نو د وطنیت د عقیدې په وجه طالبان یوازې د افغان ولس په اړه فکرمن دي او له نور اسلامي امت سره یې څه کار نشته.**

**د طالبانو د لیک بل پراګراف:** (ستاسي نا مصلحت اندیشه چارواکي که د افغانستان جګړه هر ډول توجیه کوي او هر عنوان ورته ټاکي خو واقعیت دادی چې په ترڅ کې یې ستاسو پوځ د ښځو او ماشومانو په ګډون لسګونه زره بیوزله افغانان شهیدان کړل، په لکونو یې ژوبل کړل او په زرګونو نور یې په ګوانتنامو، بګرام او نورو سرې زندانونو کې واچول او له هغوی سره یې داسې ناوړه چلند وکړ چې بشریت ترې شرمیږي او د امریکایي تمدن او تهذیب له دعوا سره هیڅ اړخ نه لګوي.)

☜ **طالبان په دې پراګراف کې هم د خپلې عقیدې (وطنیت) ښه اظهار کړی، یوازې افغان شهیدان، بندیان او زخمیان ورته ښکاري اګر چې دې کافرو خو د طالبانو په نسبت د نورې نړۍ له مسلمانانو سره ډېر ظلمونه کول ځکه چې هغوی خو د طالبانو په څېر په وطنیت ایمان نه درلود، چې غربي کافر له طالبانو نه ښه په دې موضوع پوهېږي، خو طالبانو سره یوازې د افغانانو فکر شته او نور مسلمانان یې چېرته په تحت الشعور کې هم نه ګرځي.**

په دې پراګراف کې طالبان د امريکايي تهذيب ستاينه کوي ځکه خو ورته وايي چې دا کارونه له امريکايي تهذيب سره اړخ نه لګوي.

اى طالبانو! تاسو ته د امريکا کوم تهذيب دومره ښه ښکاري چې دا کارونه يې له شان سره برابر نه دي؟

آيا د هماغه امريکا تهذيب درته ښه ښکاري چې ښځې پکې له ښځو سره ودونه کوي او سړي له سړيو سره؟

آيا هماغه امريکايي تهذيب چې له مختلفو ځناورو لکه سپي، بيزو او نورو پليتو حيواناتو سره ګډ ژوند تېروي او ودونه ورسره کوي او هم خپل ميراث د همدې حيواناتو په نومونو نوموي؟

آيا د هماغه امريکايي تهذيب ستاينه کوئ چې هر کال پکې بې شمېره حرموني پيدا کېږي؟ او آيا د هماغه امريکايي تهذيب ستاينه کوې چې د دنيا په مختلفو زندانونو کې د دوى له پليتو عسکرو مسلمانې خوينې حامله کېږي؟

آيا هماغه امريکا تهذيب ښه بولئ چې په مسلمانانو يې په ټوله نړۍ کې د ظلم، وحشت او اوسپنې باران شروع کړى؟

**او بالاخره د ټولو فسادونو د مور امريکا هغه تهذيب درته ښه ښکاري چې د خپل رب(الله) سره يې جګړه اعلان کړې او د هغه د قوانينو په ځای يې د خپل چټل ذهن جوړ قوانين عملي کړي؟**

**ای طالبانو مونږ به درته د هغه امريکايي تهذيب کوم اړخ راسپړو چې تاسي ته يې په افغانستان کې شوي او کېدونکي ظلمونه د هغوی د تهذيب سره مناسب نه ښکاري.**

**ای طالبانو! غربي وحشيان کله تهذيب پېژني او کله يې لري خو تاسي ته به د هغوی تهذيب د وطنيت عقيده ښکاري چې پکې د بل سيکولر وطن نيول بند دي او له همدې تهذيب سره اړخ نه لګوي، نو تاسي ته ځکه همدا تهذيب، تهذيب ښکاري چې په سترګو مو د وطنييت پټۍ لګېدلي.**

**په هر صورت امريکايي ولس ته د طالبانو له خوا په ليکل شوي ليک کې له اسلامي امت نه ډېره خواخوږي له امريکايي ملت سره موجوده چې باربار په افغانستان کې د دوی د شويو تاوانو په اړه له امريکايي ولس سره خواخوږي اظهاروي چې په يو ځای کې ورته وايي:** (آيا تاسو په دې راضي ياستئ چې ستاسي په زحمت ګټل شوي پيسې په افغانستان کې پر يوه داسې فاسد نظام ولګول

شي چې دولتي مفسدين يې په يوې جرمي پيښه کې ۹۰۰ مليونه ډالره له کابل بانک څخه غلا کوي؟)

**له امريکايي ولس سره د طالبانو د دومره خواخوږۍ د ښکاره کولو يوازې يوه وجه ده چې هغه له دوی سره د وطنيت عقيدې يووالی دی، ځکه هغوی هم د وطنيت عقيدې لرونکي دي او دوی هم، که نه نو له امريکايي ولس سره د طالبانو دا دومره خواخوږي په څه وجه ده؟**

**راځو د طالبانو د ليک بل پراگراف ته:** (کوم کسان چې د همدې نظام د پلی کيدو لپاره ستاسي ترڅنگ ولاړ دي هغه د افغانانو په نظر د اولس او ملي گټو غداران دي. بالمقابل څوک چې ستاسو د دې فاسد رژيم په مقابل کې وسلواله مبارزه کوي، هغوی د خپل هيواد، خپلو ملي گټو او خپل ملي استقلال او عزت د ترلاسه کولو او دفاع د لارې مبارزين دي چې د عام افغان اولس په زړونو کې د اتلانو په حيث ځای لري دا چې امريکايي ميډيا د افغانانو د مقاومت په اړه پروپاگنډ کوي، چې دلته جنگيدونکي وسله وال افغانان نه، بلکې له بهره راغلي په اصطلاح تروريستان دي دا هغه نامعقول تبليغات دي چې دوی يې د خپل شکست د پټولو لپاره کوي.)

**طالبانو ته د افغانستان مرتد چارواکي صرف غداران ښکاري اگر چې هغوی د کفري نظام د قايمولو په وجه ښکاره**

مرتد او له اسلام نــه وتــلي، خــو طالبــانو تــه ځکــه مرتــد نــه ښکاري چې افغانان دي او په وطنيت کې خو د کفــر او اســلام خبره مطرح نه وي، ځکه خو يــې دوی هــم غــداران بــولي نــه مرتد، او نظام يې هم کفري نه بــولي بلکــې فاســد يــې بــولي، ځکه چې ايمان يې په وطنيت دی نه په اسلام. که په اسلام يې ايمان وای نو نظام ته به يې ورته کفري او افرادو تــه بــه يــې ورته مرتد ويلی.

ای طالبانو! چېرته له کوم حق پرست عــالم نــه وپوښــتئ چــې ښکاره مرتد او کافر ته مرتد او کافر نه ويل څه حکم لري؟

خو ددې اوسني طالبانو خبره له وطنيت سره برابــره ده چــې دوی تــه حکــومتي افغــان مرتــدين صرف غــداران ښــکاري، مسلمانان خو يې مرتد بولي او دا هم ددوی په نظر افغانان د افغانستان د ملي ګټو او مــلي اســتقلال (؟) لپــاره جنګېــدونکي اتلان بولي.

ملي ګټې او استقلال د وطنيت کلمات نه دي؟

د سيکولر وطن(افغانستان) لپاره جنګ مو هم د وطني ګټــو او استقلال لپاره دي نه له اسلامي ګټو او اسلامي وطــن د آزادۍ لپاره او د قرآن او سنت نه د جوړ شرعي نظام لپاره.

**ددې پراګراف وروستۍ جملې يې هم له بل کفر نه ډکې دي چې امريکا ته وايي چې له مونږ سره تروريستان(د وطنيت له عقيدې منکر بهرني مؤمنان) نشته نو ځکه يې دا جملې هم په وطنيت د ايمان ښکارندويي کوي او بهرني مسلمانان ورته تروريستان ښکاري نو همدا عقيده يې هم د کفر لپاره کافي ده چې په وطنيت د ايمان په وجه امريکا ته اطمينان ورکوي چې له مونږ سره تروريستان نشته، وړاندې پراګراف کې وايي:** (بايد ووايو چې د افغانستان اسلامي امارت د خپل هيواد د خپلواکۍ لپاره مشروع هلې ځلې کوي. له اشغال پرته خپلواک هيواد درلودل زموږ طبيعي او انساني حق دی. د خپل هيواد آزادي غوښتل او هلته د خپل ولس د عقيدې مطابق اسلامي نظام جوړول په هيڅ قانون کې ترهګري نشي-ګڼل کيدای. د يادونې وړ ده چې موږ په نورو هيوادونو کې د تخريبي اعمالو اجنډا نه لرو او په تيرو اوولسو کلونو کې مو دا عملاً ثابته کړې چې په نورو هيوادونو کې مو هيڅ ډول لاسوهنه نه ده کړې همداراز، بل چاته هم اجازه نه ورکوو چې د افغانستان خاوره د نورو هيوادونو په خلاف استعمال کړي.)

☜ **وطنيت پرستي يوه نوې کفري عقيده ده چې د ځينو قوانينو له ډلې يې يو دادی چې ته نه بل ملک ته دا حق ورکړې چې ستا په ملک حمله وکړي او نه ته ځانته دا حق ورکړې چې د بل چا په ملک حمله وکړې.**

په دې قانون کې داده چې که مسلمانان په ټوله نړۍ د اسلامي حکومت قايمول غواړي نو دا قانون ورته اجازه نه ورکوي چې طاغوتي نظامونه ختم کړي په ځای يې اسلامي قايم کړي؛ ځکه چې بيا خو په دې وطن د بل چا حکومت راځي او ددې قانون منونکي دا حق نه لري چې د کفري نظامونو د ختمولو او د اسلامي وطن د آزادولو لپاره په دغه ملکونو کې فرض عين جهاد وکړي. کله چې څوک دا ومني لکه طالبانو چې په پورته پراګراف کې ثابته کړې او امريکايي ولس ته يې ويلي چې مونږ خو ستاسي د و طنيت دا قانون منو چې نه بل چاته اجازه ورکوو(لکه خلافت)ته؛ نه مونږ په نوره نړۍ کې نعوذبالله تخريبي اعمال(فرض عين دفاعي جهاد) کوو.

خلک به د طالبانو له دې نه هم د بل جوت کفر په تمه وي چې يو عمل په اسلام کې فرض عين وي او دوی يې تخريبي عمل بولي، نو آيا له دې نه به بل ښکرور کفر وي؟

ددې دا معنا داده چې که هغه وخت په مدينه کې طالبان موجود وای نو نبيﷺ ته به يې ويل چې مونږ له خپل هيواد نه بل چاته د تخريبي اعمالو اجازه نه ورکوو، ځئ په خپل هيواد (مکه) کې مو خپلې مبارزې ته ادامه ورکړئ.

**اوس د وطنیت کفري عقیدې منلو په وجه مرتد شوي طالبان په فخر سره امریکایي ولس ته دا وایي چې مونږ فرض عین(دفاعي جهاد) ته تخریبي عمل وایو او په دې اوولس ۱۷ کالو کې مو ثابته کړې چې دا تخریبي عمل مو په نورو ممالکو کې نه دی کړی، استغفر الله.**

**بلـه یـې دا چـې دوی چـې کـوم جنـګ روان کـړی نـو دوی امریکایي ولس ته دا ویل غواړي چې مونږ خو جهاد نـه کـوو بلکې د وطنیت لپاره جنګ دی چې ستاسي په قانون کې جـائز او رسمي دی نو ځکه خو ورتـه وایـي چـې:** (د افغانستان اسلامي امارت د خپل هیواد د خپلواکی لپاره مشروع هلې ځلـې کـوي. لـه اشغال پرتـه خپلواک هیواد درلودل زمونږ طبیعی او انساني حق دی.)

**☜ د کوم شریعت مشروعیت یادوي؟**

**آیا د ملل متحد د شریعت مشروعیت نـه یـادوي چـې پکـې د وطنیت په قوانینو کې د وطـن لپـاره جنـګ جـواز او رسمیت لري؟ د خپل وطن دفاع پکې جائز ده؟**

**بلکل د ملـل متحـد شریعـت یـادوي او نـورې اسلامي نـړۍ آزادولو ته طالبان تخریب وایـي او د افغانسـتان پـورې جنـګ مشروع(؟) ګڼي نو ځکه ددوی جنګ جهاد نه دی، کـه وای نـو**

**دوی بـه د اسـلامي وطـن تـر آزادۍ جنـګ فـرض ګاڼـه او دا زمونږ اسلامي شريعت و، نو طالبان چې کوم شريعـت يـادوي هغه د ملل متحد شريعت دی چې دوی پرې ايمـان راوړی. دا رنګه طالبـان چـې وايـي پـه خپـل وطـن يـې د خپلـې خوښـې حکومت جوړول په هيڅ قانون کې ترهګري نه شي ګڼل کېدای نو همدا د ملل متحد قوانين يادوي چې د وطن لپاره جنګ او د خلکو په خوښه حکومت پکې جواز لري.**

**د پورته پراګراف وروستۍ جمله يې هم د وطنيت هينـداره ده چې پکې ليکل شوي:** (بل چاته هم اجازه نه ورکوو چې د افغانستان خاوره د نورو هيوادونو په خلاف استعمال کړي).

☜ **دا کوم دين دی چې بل چاته اجازه نه ورکوي چې په نورو ملکونو کې له دې ځايه جهاد رهبري او د کفارو خوبونـه آرام کړي؟ دا همدا د وطنيت قانون دی چـې طالبـانو پـرې ايمـان راوړی او د اسلامي امت د آزادۍ لپاره فرض عين جهاد ته لـه افغانستانه اجازه نه ورکوي. که نه پـه اسـلام کـې خـو دا نشـته چې ته له دې ځايه جهاد مه کوه، ځکه چې نبي ﷺ تـه پـه مکـه کې ژوند سخت شو نو مدينې ته لاړ او لـه هغـه ځايـه يـې لـه کفري نړۍ سره جهاد پيل کړ، که طالبان هلته وای نـو نبـي ﷺ**

**ته به يې ويلي و چې مونږ تاته له دې ځايه د جهاد اجازه نه درکوو لکه څنګه يې چې په دغه ليک کې فرمايلي.**

**راځو د طالبانو د ليک يو بل پراګراف باندې تبصره کوو چې په دې ډول دی:** (جګړه په موږ تپل شوې، زموږ انتخاب نه دی. زموږ ترجيح دا ده چې د افغانستان مسئله له سوليزي لارې حل کړو. امريکا بايد اشغال ختم کړي او د افغانستان ولس ته د خپلې عقيدې سره سم د حکومت جوړونې په ګډون د هغوی په مشروع حقوقو قائل شي).

☜ **په دغه پراګراف کې طالبان له فرض عين جهاد نه انکار کوي او وايي چې دوی خو جهاد نه کوي، بلکې کوم جنګ چې دوی روان کړی د مجبورۍ او په دوی تپل شوی جنګ دی. دوی جهاد نه کوي او نه يې انتخاب دی، نعوذ بالله. د الله تعالی له خوا فرض عين امر ته دوی وايي چې زمونږ انتخاب نه دی په مونږ تپل شوی.**

**په اسلام کې خو دفاعي جهاد کول فرض عين دي چې زمونږ د رب امر دی او له يو ځل فرض عين جنګ نه پاتې شويو صحابه کرامو ﷺ سره نبي ﷺ پنځوس ورځې اړيکې بند کړې او حتی چې خپلو مېرمنو يې هم هغه صحابه کرام ﷺ چې په هر جنګ يې به له نبي ﷺ سره ملګري و خو فقط په يو جنګ کې**

**د سستی له وجې پاتې شوي ول، رسـول اللـه ﷺ ورسره دومـره سختي وکړه! خو طالبان ترې ښکاره انکار کوي او لا اوس هـم مسلمانان دي؟ دوی یې تپل شوی جنګ بولي او تر افغانستانه یې کوي. د اسلام له یو اندک عمل نه انکار سـړی کـافر کـوي، خو طالبان له فرض عین جهاد نه په انکار نه کافر کیږي؟!!!**

**طالبانو تاسي له امریکا سره د کومې سولې یادونې کوئ؟**

**آیا هغه کافر چې په مسلمانانو یې د اوسپنې او اور باران پیـل کړی وي له هغه سره سوله شته؟**

**سوله خو به د مسلمانانو خلیفه کوي او له حربي اصلي کافرو سره به هله کیږي چې لـه ټولـو مسـلمانانو لاس ونیسي. خـو ستاسي چې له نـورو مسـلمانانو سره کـار نشـته او یـوازې پـه افغانستان کې جنګ بندول غواړئ، که پـه نـوره نـړۍ کـې پـه مسلمانانو هر څه کیږي نو تـاسي تـه څکـه مهمـه نـه ده چـې تاسي پـه وطنیـت ایمـان راوړی او لـه مسـلمانانو سره ولایـت نکوئ او فرض عین جهاد نه انکار کوئ.**

په یاد ولرئ نن هغه څوک ستایل کېږي چې د خپل قوم د حقوقو لپاره مبارزه کوي. که کوم تاجک د تاجک د حقوقو لپاره هلې ځلې کوي؛ اتل دی. که کوم پنجابی د پنجابي د حقوقو غوښتونکی وي نو قهرمان دی، که پښتنو د پښتونولۍ نغاره ډنګوله، بهادران دي، که عربانو، عربیت ته لمن وهله نو خلک یې د ستایلو لپاره القابو ته حیران وي؛ بالاخره که چا وطنیت(ایرانیت،پاکستانیت،افغانیت یا کوم بل جاهلیت) ته دعوت او بلنه کوله نو هغه بیا د خلکو خیرخوا او دوست دی؛ حال دا چې دې دعوت ته نبيﷺ مرداري ویلې خو که چا د ټول انسانیت د حقوقو د غوښتلو غږ پورته کړ چې ظالمانو تر پښو لاندې کړي او که چا د اسلامي حقوقو دفاع کوله نو د هغه ځای په غره کې هم نه کېږي؛ لوی او واړه، مشران او کشران، خپل او پردي یې په غندلو نه ستړي کېږي؛ هغه بیا دهشتګرد او ترهګر شي، دا ولې؟

اصلي خبره داده چې د یو قوم د حقوقو په غوښتلو کې د اسلام او کفر، مسلمان او کافر، مرتد او مجاهد خبره مطرح نه وي، فقط د قوم د حقوقو لپاره منډې ترړې وي؛ که قومي مرتد او هر څومره د اسلام غټ دښمن هم وي خو دی یې حقوق غواړي؛ نو ځکه خو ستایل کېږي؛ اګر چې دا په اصل کې

د جاهلیت داعیان دي چې نبيﷺ دې دعوت ته مـرداري ویلـې؛ ځکه په دې دعوت کې د کافرو ډېرې فایدې دي، چې تـر ټولـو غټه یې د کفر او اسلام توپیر نه کول دي، بلکې دا داعیـان خـو خپل مسلمان قومیان ترټولو په بدو نومونـو یـادوي؛ د هغـوی د حقوقو غږ به په عمر کې هم چېرته له دې داعیـانو وانـه وري؛ که چېرته ترې په بې هوشۍ کې کومه خبره نیمه ووځي نو بېرته به یې په کولو پښېمانه وي؛ ځکه چې دلته بیا د مسـلمان ملاتـړ راځي او دا بیا دا انسان خواره کافر، کله منلی شي!

که یو څوک د قومیت د محدود او کوچني فکر پـه ځـای د ټول انسانیت لپاره، د هغو حقوقو د غوښتو غږ پورته کړي چې د هغوی خالق ورته ورکړي وي؛ لکه د دوی د فکـر آزادي، د بنـده بنده ګي نه کول، ددوی مال په ناحقه نـه خـوړل، لـه دوی نـه د غلامان نه جوړول، ددوی په حیاء او ناموس تېری نـه کـول، لـه دوی نه ددوی د اسلامي عقیدې آزادي نـه اخیسـتل؛ پـه دوی د خپل فکر جوړ قوانین نه عملي کول، دوی د خپلـو شخصيـ ګټـو لپاره د حیواناتو په څېر نه استعمالول، د الهي نظام پـه سـیوري کې ژوند او نور... نو هغه بیـا دهشـتګرد او ترهګـر وي، وژل او ربړول یې جائز بلل وي، بلکې بیا د هـر ډول سـزا مسـتحق ګڼـل کېږي.

د اوسني امارت چې کومې سولې ته پلان او اقدام دی، دا په هیڅ وجه جائز ندی، بلکې دا ښکاره ارتداد او کفر ته تسلیمیدل دي.

په اسلام کې د هر شرعي عمل خپل شرطونه او اصول دي چې که هغه پکې موجود شي هغه کار شرعي حیثیت لري او که پکې موجود نه وي نو هغه بیا شرعي نه بلل کیږي. سوله هم یو له هغو عملونو څخه ده چې خپل شرطونه لري، په کومه سوله کې دا شرطونه موجود وي نو سوله ده او که نه نو؛ سوله یې نشو بللی. اوس د شرعي سولې او د طالبانو د سولې ترمنځ په توپیر لږه رڼا اچوو:

اوله خبره دا چې د سلف صالحینو منهج او اجماع دا ده چې کله کوم کافر یوې منطقه کې له یو مسلمانې ډلې سره حربي شول نو ټولې اسلامي نړۍ ته حربي کیږي.

اوس نو کله چې دا امریکا، ناټو او آیساف، په عراق، سوریه، فلسطین او ... کې مسلمانانو سره په جنګ کې دي نو هغوی ته چې حربي دي نو ټولې مسلمانې نړۍ ته حربي دي، حالانکه همدغه امریکا، ناټو او آیساف په افغانستان او پاکستان کې هم د مسلمانانو پرضد جنګیږي، ددوی په حربي اوسیدلو کې د هیڅ چا اختلاف نشته.

نو طالبان بلکل دا حق نلري چې دوی سره دې سوله وکړي، پداسې حال کې چې دا کفار په ټوله نړۍ کې د مسلمانانو قتل او قتال کوي.

دارنګه اصلي معامله کفارو سره قتال دی، **سوله نده.**

اصلي معامله هغوی سره بغض، براءت، کینه او دښمني ده، **سوله نده.**

چې پدې باندې دلایل بې شمېره زیات دي ځیني یې راوړو:

(قَٰتِلُوا الَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَلَا بِالْيَوْمِ الْـَٔاخِرِ وَلَا يُحَرِّمُونَ مَا حَرَّمَ اللَّهُ وَرَسُولُهُ وَلَا يَدِينُونَ دِينَ الْحَقِّ مِنَ الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَٰبَ حَتَّىٰ يُعْطُوا الْجِزْيَةَ عَن يَدٍ وَهُمْ صَٰغِرُونَ) ﴿سُورَةُ التَّوبَة : ٢٩﴾

ژباړه: له اهل کتابو څخه د هغو خلکو په خلاف وجنګېږئ چې په الله او د اخرت په ورځ ایمان نه راوړي، او څه چې الله او د هغه پیغمبر حرام کړي دي، هغه نه حراموي او حق دین خپل دین نه ګرځوي. (له هغو سره وجنګېږئ) تر دې پورې چې په خپل لاس جزیه ورکړي او ذلیل شي.

﴿وَمَا لَكُمْ لَا تُقَٰتِلُونَ فِى سَبِيلِ ٱللَّهِ وَٱلْمُسْتَضْعَفِينَ مِنَ ٱلرِّجَالِ وَٱلنِّسَآءِ وَٱلْوِلْدَٰنِ ٱلَّذِينَ يَقُولُونَ رَبَّنَآ أَخْرِجْنَا مِنْ هَٰذِهِ ٱلْقَرْيَةِ ٱلظَّالِمِ أَهْلُهَا وَٱجْعَل لَّنَا مِن لَّدُنكَ وَلِيًّا وَٱجْعَل لَّنَا مِن لَّدُنكَ نَصِيرًا﴾ ﴿سُورَةُ النِّسَاء : ٧٥﴾

ژباړه: آخر څه دليل دی، چې تاسي د الله په لاره کښې د هغو بې وسو نارينه، ښځو او ماشومانو په خاطر نه جنګېږئ چې کمزوري کړای شوي، تر فشار لاندي نيول شوي دي او فريادونه کوي چي: «ای زمونږ ربه، موږ له دې وطنه چې اوسيدونکي يې ظالمان دي وباسه؛ او له خپل لوري څخه زموږ کوم سرپرست او مرستندوی پيدا کړه.»

خو کله چې د مسلمانانو امير د کوم مصلحت په بناء باندې له ځينيو کفارو سره سوله وکړي د يو معين وخت لپاره، ترهغو چې نورو کفارو سره د قتال لپاره اوزګار شي، نو دا جائز دی.

ليکن اوسني طالبان ټولو کفارو ته تسليمېږي، ټوپکونه دوی ته ورکوي، او کفار پرېږدي او نور باقي مسلمانان!!

او دوی ابدالابد نور جنګ نکوي! چې دا واضحه کفر ته تسليمېدل دي.

اوسني طالبان كفر ته تسليميږي، د هغوی پلی کړی قانون ډيموكراسي مني، د هغوی ځايناستي حكومتي مرتدين مني، او همدې نظام ته ورداخلېږي، بيا دې ته (مهادنه، معاهده، مصالحه، موادعه، مسالمه) او نور نومونه وركوي چې دا شريعت په تاويلولو خپل كفر پټول دي، الله تعالى فرمايلي:

﴿إِنَّمَا يَنْهَىٰكُمُ اللَّهُ عَنِ الَّذِينَ قَٰتَلُوكُمْ فِي الدِّينِ وَأَخْرَجُوكُم مِّن دِيَٰرِكُمْ وَظَٰهَرُوا عَلَىٰٓ إِخْرَاجِكُمْ أَن تَوَلَّوْهُمْ ۚ وَمَن يَتَوَلَّهُمْ فَأُولَٰٓئِكَ هُمُ الظَّٰلِمُونَ﴾ ﴿سُورَةُ المُمتَحنَة : ٩﴾

ژباړه: بېشكه همدا خبره ده چې الله تاسي د هغو خلكو د دوستي څخه منع كوي، چې ستاسي سره د دين په معامله كښې جنګېدلي دي، تاسي يې د خپلو كورونو څخه ويستلي ياست او ستاسي په ويستلو كښې يې يو د بل ملاتړ كړی دی. له هغو سره چې كوم كسان دوستي وكړي، همغوی ظالمان دي.

رسول الله ﷺ چې سوله كړې، نو دا هغه وخت كې چې رسول الله ﷺ اقدامي غزوې كولې او يهودو سره يې سوله وكړه نورو كفارو پسې يې توره همداسې برېښېده او قتال روان و، خو طالبان په پوره معنى خپله توره په ځمكه ږدي، او نور جنګ نكوي!

نن کفارو د مسلمانانو ملکونه اشغال کړي، تـه دې ورسره سـوله کوې؟

د نبي عليه السلام په سوله کې خو دا نه وه چې د مسـلمانانو ځمکـه دې کفارو ته وسپارل شي، بلکـې هغـوی سره صرف پـدې سـوله شوې وه چې معين وخت پورې به جنګ نکوو او بس!

خو طالبان د ټولې اسلامي نړۍ د ځمکو معامله ورسره کوي!

هغه ځمکې چې د صحابه کرامو﵃ پاکې وينې يې پـه فـتح کولـو کې تويې شوې وې، هغـه ځمکـې چـې د امـت پـاکو مجاهـدينو اتلانو ددې په فتح کولو کـې خپـل سرونـه نذرانـه کـړي و، خـو طالبان يې د سولې په نامه کفارو ته سپاري.

دارنګه دا نوع سوله د نبي عليه السلام په سيرت کې بلکل نشـته چـې سوله کې دې عقيدوي تنـازل شـوی وي، کفـارو سره دې داسـې سوله شوي وي، چـې د اسـلام هرڅـه يـې ورتـه پريښـي وي، د هغوی نظام يې منلی وي، او د اسلام له نظام او تحکيم نه ورته تېر شوي وي، او صرف د هغـوی پـه ويسـتلو دې سـوله منعقـد کړي وي، يـا ددې لپـاره شـوي وي چـې کفـارو سره د مينـې او محبت او خيرخواهۍ له وجې شوي وي، بلکې د کفارو دفع کول او د هغوی نظام دفع کول مراد دي، تردې چـې پـه ځمکـه کـې

فساد او فتنه پاتې نشي، چې همدا د جهاد مقصد هـم دی، اللـه تعالی فرمايي: ﴿وَقَٰتِلُوهُمْ حَتَّىٰ لَا تَكُونَ فِتْنَةٌ وَيَكُونَ الدِّينُ كُلُّهُ لِلَّهِ ۚ فَإِنِ انتَهَوْا فَإِنَّ اللَّهَ بِمَا يَعْمَلُونَ بَصِيرٌ﴾ ﴿سُورَةُ الانفَال : ٣٩﴾

ژباړه: ای مؤمنانو! له دې کافرانو سره تر هغه پوري وجنګېږئ چې فتنه پاتې نه شي او ټول دين د الله لپاره شي. بيا که هغوی له فتنې څخه لاس واخيسته، نو د هغـو د عملونـو ليـدونکی اللـه دی.

دا چې طالبانو له امريکا سره د سولې په نوم کومې خبرې پيـل کړي، دا سوله نه، بلکې د امريکا په لاس جوړ شوي نظـام تـه د دوی د تسليمېدو خبرې دي خو خپلې تسليمۍ تـه د سـولې نـوم ورکوي.

که احيانا دا پورتنۍ خبرې هـم نـه وي او دا کـار د مسـلمانانو امير (خليفة) کړی وای، نو هغه هم بيا شرطونه لري خو راځـئ د طالبانو سوله او اسلامي سوله سره مقايسه کړو:

طالبانو له ډېره وخته امريکا تـه مسـتقيما د سـولې وړانديزونـه کول، خو په اسلام کې به مسلمان، کافر ته د سولې وړانـديز نـه کوي؛ مګر که کله کافر سولې ته مـيلان وښـيي نـو مسـلمان بـه

هغه وخت په الله توکل کوي او سوله به ورسره کوي خو طالبان، برعکس امریکا ته د سولې وړاندیزونه کوي.

سوله د دوه محاربو(جنګ کوونکو) لوریو له طرفه کیږي، مسلمانان به یو نظام لري او د دغه نظام مشر(خلیفه) به له کافرو سره د سولې معلوم تړون کوي چې شرایط او وخت به یې معلوم وي. په دغه سوله کې به د اسلامي امت مصلحت وي، د نورو مصلحتونو ترڅنګ به یې څه دا وي چې د نورو کافرو قتال ته به اسلامي امت ځان فارغوي، له هغوی سره به جنګونه کوي او اسلام به نورې نړۍ ته رسوي خو آیا د طالبانو سوله هم دا شرطونه لري؟

لومړی دا چې سوله به د مسلمانانو امیر کوي، خو د طالبانو له لوري د سولې نماینده ګي د یو سیکولر وطن د ساتنې لپاره د جنګیدونکې ډلې د مشر استازي کوي، نه د مسلمانانو خلیفه؛ ځکه چې طالبان له افغانستانه بهر د نور اسلامي امت د آزادۍ فکر خو پریږده، بلکې امریکا ته په استول شوي لیک کې یې ویلي چې بل چاته به هم له افغانستانه په نورو ملکونو کې د جهاد اجازه نه ورکوي.

نو دا شرط خو د طالبانو په سوله کې نه دی موجود نو په دې لحاظ د طالبانو سوله شرعي سوله نه ده.

دوهم دا چې د سولې وړاندیز به کافر کوي نه مسلمان، لکه چې الله تعالی فرمايي: (وَإِن جَنَحُوا لِلسَّلْمِ فَاجْنَحْ لَهَا) [الأنفال: ٦١] که چېرته هغوی(کافرو) سولې ته میلان وښود، نو ته هم ورته میلان وښایه.

یعنې که کافر سولې ته میلان وکړي نو مسلمان به بیا سوله کوي او که د کافرو له خیانته ویریږي نو په الله دې توکل وکړي. خو طالبانو امریکا ته له ډېره وخته د سولې وړاندیزونه کول خو امریکا نه منل، تردې چې اوس یې نو په دې لحاظ هم ورسره د خپلو شرایطو د منلو په صورت کې ومنله، طالبانو خبرې سوله نه بلل کېږي؛ ځکه چې امریکا ته طالبانو د سولې وړاندیز کړی.

بله دا چې د طرفینو تر منځ به سوله موقته او معیینه وي خو آیا د طالبانو نومول شوې سوله به هم موقته او تر یو وخته وي؟

دا معلومه ده چې د طالبانو او مقابل طرف یې مقصد دادی چې په افغانستان کې جنګ ختم شي نو معلومه شوه چې د طالبانو دا کړنه، سوله نه ده؛ بلکې له جنګه ناسته او تسلیمي ده.

دارنګه په سوله کې يو مهم مصلحت دادی چې مسلمانان به له يو کافر سره د سولې تړون کوي خو د بل کافر په مقابل به خپل جنګ ته ادامه ورکوي. آيا طالبان چې له امريکا سره سوله کوي، نو له کوم بل کافر سره به جنګ ته دوام ورکړي؟

بل کافر سره خو طالبان جنګ ځکه نه کوي چې طالبان خو کوم نړيوال اسلامي فکر نلري چې په نوره نړۍ کې د مسلمانانو د آزادۍ لپاره جهاد وکړي بلکې فکر يې وطني يعنې تر افغانستانه محدود دی نو دا هم واضحه شوه چې د طالبانو د سولې په نوم خبرې سوله نه ده.

کله چې مسلمانان له کوم کافر سره سوله کوي نو دوی به خپل نظام لري چې په هغه کې به ژوند او د کافرو په لاس په جوړ شوي نظام کې به نه اوسيږي، که همداسې پسې د تاريخ پاڼې واړوئ نو وبه وګورئ چې له اصلي کافرو سره چې په هر ځای کې سوله شوې نو مسلمانانو هيڅکله د هغوی تر نظام لاندې ژوند نه دی کړی بلکې خپل اسلامي نظام به يې موجود او سوله به په دې موخه کېده چې نورو کافرو ته يې مخه خلاصه شي.

خو آيا طالبان هم کوم اسلامي نظام لري چې د هغه په سيوري کې ژوند وکړي؟

دا خو معلومه ده چې طالبان اوس په يو کلي کې هم شرعي نظام او تمکين نلري چې خلک ورته هجرت وکړي او دوی پکې اسلام نافذ کړي نو پدې لحاظ هم د طالبانو د سولې په نوم خبرې سوله نه ده؛ بلکې دوی به د حکمتيار په څير د امريکا په لاس د جوړ شوي حکومت عسکر گرځي او په دغه نظام کې به مدغم کيږي.

د رسول اللهﷺ معاهدې په مدينه کې له مشرکينو سره په دې نه وې چې رسول اللهﷺ او صحابه کرامﷺ دې د هغوی د قوانينو لاندې ژوند تيروي او د اسلام قوانين دې ورته پريږدي، والعياذ بالله.

بلکې که داسې وای نو مکه کې به يې سوله کړې وه، کله چې هغوی ورته وويلې لږ ته تنازل وکړه او خپل دين او دريځ نه راښکته شه، خو رسول اللهﷺ ورسره ونه منله او د يو اسلامي دولت د رامنځته کولو لپاره يې مدينې ته هجرتونه وکړل او له هغه ځايه په جهاد کولو مخ ته لاړ.

بله دا چې له کافر سره خو سوله د مسلمانانو په بې عزتۍ کولو او ظلم کولو ماتيږي، خوچې ددوی سوله مخکې له ماتيدلو په اسلامي شرايطو نه بلکې په کفري ډيموکراتيک شرايطو تړل شوې نو څنگه به په اسلامي اصولو ماته شي؟!.

الله تعالی فرمايي: ﴿وَإِن نَّكَثُوٓا أَيْمَٰنَهُم مِّنۢ بَعْدِ عَهْدِهِمْ وَطَعَنُوا فِى دِينِكُمْ فَقَٰتِلُوٓا أَئِمَّةَ الْكُفْرِ ۙ إِنَّهُمْ لَآ أَيْمَٰنَ لَهُمْ لَعَلَّهُمْ يَنتَهُونَ﴾ ﴿سُورَةُ التَّوبَة : ١٢﴾

ژباړه: او که دوی له ژمنې کولو وروسته بیا خپلې لوړې (قسمونه) ماتې کړي او ستاسي پر دين حملې کول شروع کړي، نو د کفر له علمبردارانو سره وجنګېږئ؛ ځکه چې د هغوی د لوړو (قسمونو) څه اعتبار نشته. ښايي چې (بيا د تورې په زور) هغوی راوګرځي.

خو طالبان! دوی دايمي سوله کوي، او دا نه ويني چې برحال همدا اوس هم همدا کفار لګيا دي او د نړۍ په هر کونج کې له مسلمانانو سره څه څه ظلمونه کوي، خو ددوی تړون به مات نشي.

نو آيا هغه مسلمانان نه دي چې ددوی سوله په هغوی باندې د پاکستاني يا افغاني مرتدينو او نورو نړيوالو حربي کفارو سره ددوی ظلم کولو په وجه ماته شي، يا هغه مسلمانان ندي چې په فلسطين، برما، سوريه، عراق او نوره نړۍ کې ددې کفارو لخوا په بمونو سوځول کېږي، آيا هغه مسلمانان ندي چې په عراق – موصل کې پرې ۳۰،۰۰۰ دېرش زرو نه زيات درانه بمونو وغورځول شول او کورونو کې د ښځو او ماشومانو سره يوځای

خبښ شول، آیا هغه مسلمانان ندي چې کفـري نـړۍ همـدا اوس په جهاني ځواکونو مقابله کوي؟



دا خو له څه چې همدا کفار د قرآنکریم بې عـزتي کـوي، د رسـول اللـهﷺ کارټونونـه جـوړوي، د جومـات او نـور شرعـي مقدساتو بې عزتی کوي، خو ستا په معاهدې کې ددې ارزښتونو کې هېڅ اهتمام نشته!




آیا دوی چې د اسلام سپېڅلي دین د شعائرو دومره هتک او بـې عزتی کوي تاسو بیا هم ورسره معاهدې کوئ، او وایئ بـه چـې زمونږ دوستان دي، زمونږ ورسره معاهده ده؟!.

دا صلیبیان چې په هر ځای کې د مسلمانانو زنانه ؤ بې حرمتیانې کوي، چې د عکسونو له راوړلو یې لاسونه مو لړزېږي، او له شرم نه یې ډېر داسې عکسونه نشو نشرولای، تاسو به بیاهم معاهدې کوئ؟!.



له یاده مو وواته چې د الله رسولﷺ د یوې مسلمانې ښځې د بې حرمتۍ لپاره ټول یهود له مدینې ونه شړل، آیا معاهده یې ورسره ماته نکړه؟!.

دا چې اوس هم په زور او جبر د مسلمانانو ملکونه اشغالېږي، نړۍ کې د ضعیفو مسلمانانو قتل عام روان دی، دا د چا په لاس؟! د همدې ناټو او آیساف په لاس چې تاسو ورته تسلیم شوي یئ!!



آیا هغو حـربي کفـارو تـه تسـلیم شـوئ چـې مسـلمانان تڅـوي، ځوروي، اسیرانوي، بې عزته کوي او آزادي ترې اخلي؟!.




آیا دا همغه وحشیان ندي چې په سـلګونو زرو بېګنـاه مسـلمانان يې خپلو جېلونو کې محکوم کړي، څه رنګه وحشـت يـې چـې لـه لاسه کېږي، نو صرفه پرې نکوي؟!.



تاسو هغه چاته تسليم شوئ چې د وخت فرعونيـان بلـل كيـږي، هره ورځ يې لاسونه د زرگونو مسلمانانو پـه وينـو سره وي، څـه ظلم او تيرى يې چې له لاسه كيږي، په مسلمانانو يې كوي.

د الله سبحانه و تعالی د دین مقابله کوي، د الله تعالی نظام ختمول غواړي، خو تاسو ورسره سوله کړې؟!.



له یاده مو وواته چې د یو صحابي(عثمانﷺ) د شهادت آوازه رسول اللهﷺ ته راغله چې د مکې مشرکینو وژلی دی، د الله رسولﷺ يې د انتقام اخستلو لپاره ټول امت راجمع کړ په مرگ يې بيعتونه واخستل پدې معنې چې یا به ټول شهیدان کیږو یا به مکه فتح کوو!

ترڅو د یو مسلمان د وینې انتقام واخستل شي.

خو نن چې امریکا مسلمانان وژني او اسیرانوي يې، ته به وايې زما ورسره سوله ده؟!.

ستا سوله پدې معنی ده چې د ټولو مسلمانانو ښځونه کفارو ته په لاس ورکوې چې هرڅرنگه يې وژنې وژنه يې خو ما ته څه مه وایه!.

ټول مسلمانان باید په دې پوه وي چې طالبان امریکایي نظام ته د تسلیمېدو په حال کې دي؛ ځکه چې د طالبانو جنگ د وطنپالنې جنگ دی نه د اسلام پالنې جنگ، چې د خپلې همدې غلطې مفکورې له امله اوس امریکایي نظام ته تسلیمېدونکي دي.

نو ددوی سوله پوره باطله او کفري معاهده ده، ځکه په شرعي اصولو بلکل نده برابره لکه څنگه چې د عائشېﷺ حدیث کې

راځي: (ماكان من شرط ليس في كتاب الله فهو باطل وإن كـان مائـة شرط...) [متفق عليـه] ژباړه: هر هغه شرط چې د الله په كتاب كـې نـه وي نو هغه باطل دی، اګركه سل شرطونه وي...

دارنګه رسول الله ﷺ فرمايي: (من عمل عمـلا لـيس عليـه امرنـا فهـو رد) ژباړه: چا چې داسې عمل وكړ چې په هغه زمونږ امر نه وي، نو هغه رد دی.

خو د طالبانو اوسنی سوله هغه سوله ده چـې د عـرب طواغيتـو پرې كفار او مشركين بيا جزيرة العرب ته داخل كـړل او هغـوی تـه يـې نظـامي اډې وركـړې د مسـلمانانو د بمبـارولو او ځپلـو پخاطر!

اوس طالبان د همدې نوع سولې له طريقه غواړي چـې كفـار د اسلامي دولت پرخلاف اوزګار كړي.

بلكې بله عجيبه او د كفر خبره بيا دا ده چې طالبانو پدې سـوله كې دا ژمنه كړې ده چې القاعدې او داعش(اسلامي دولـت) تـه به اجازه ورنكړي چـې د افغانسـتان لـه خـاورې پـه امريكايـانو بريدونه او حملې وكړي، سبحان الله، والله المستعان.

د طالبانو دې تسليمۍ سره امريکا له خپلې کفري، ډيموکراټيکې او جمهوري تګلارې ذره هم نده په شا شوې خو طالبان نور ډيموکراټان شول.

کفارو افغانستان کې يو ډيموکراټيک، ملحد او کفري نظام قائم کړ، د همدې نظام هغه مدافعين چې د امريکې په لباس او وسلو سنبال دي، امارتيانو همدوی خپل ورونه وبلل.

ددې ملحد حکومت تګلاره همداسې جمهوري پاتې شوه، او طالبان هم د امريکې د ډيموکراسي د پروژې غړي شول.

امارت کې هغه کسان چې پخوا پرحق جنګېدل د هغوی امريکې سره صرف او صرف دښمني وه، د ملا عمر يا د اسامه بن لادن خبرې له امريکې سره ناشونې وې او دوی يوازې او يوازې د ټوپک په ژبه يو او بل ته پيغامونه استولی شول.

**هو!** اوس ترټولو لويه کاميابي په اسلامي دريځ پاتې کيدل دي، تر ټولو لويه کاميابي د ډيموکراسي تکفير ده، تر ټولو لويه کاميابي د اسامه بن لادن رحمه الله په نړيوال جهادي فکر ودريدل او په کفري هيوادونو کې مسلحانه مداخلې کول دي او تر ټولو لويه سرلوړي بيا په همدې دريځ تر قيامته پاتې کيدل دي چې دا صفتونه نور د امارت په قيادت کې له منځه تللي.

بې له شکه چې د امریکې تر ټولو لـومړی شرط د ډیموکراټیـک الحاد نظام پلي کول دي چې طالبان دا هیڅکلـه نشي۔ رد کـولی ځکه وطنیت یې ومانه او د همدې الحاد پلي کوونکي عسکر یـې خپل ورونه وبلـل، دوی د سـیکولریزم همـدې عمـده اصـولو تـه سرټیټ کړ.

دغه مات شوی صف به د کامیابۍ فکر کوي خـو ژمـن سـیکولر اصولو ته دي، ځانونه ټوپکداران بولي خو فتحـې پـه مـذاکراتو راولي او دعوې د امـارت او امیرالمـؤمنین کـوي خـو نماینـدګي یوازې د افغانیت کوي بلکې په ټیټو سـترګو لګیـا دي پـه بورمـا، فلسطین او ایغور کې یې د مظلومانو چغـو او فریـادونو بانـدې غوږونه کاڼه کړي، خو خوارج او د امریکې پروژه هـم اسـلامي خلافـت تـه وایـي چـې د مـذاکراتو نـوم هـم نـه پیـژني بلکـې مذاکراتو ته هغـه وخـت ژمـن کیـدلی شي کلـه چـې د اسـلامي سولې ټول شرایط پکې برابر وي، او ټول اسلامي امت پـه هـېڅ ځای کې هم محکوم نه وي!

او بیا به کفارو ته د مذاکراتو اول شرط د جزیې ورکول وي نـه داسې چې د منحرفو طالبانو په څېر پداسې حال کې مـذاکراتو ته کښیني چې لومړی شرط یې د کفارو له تور لیست څخه وتـل او د هغوی رضا حاصلول وي.

خو اوس د ایغور هغو مظلومو تورسرې چې په سرو سترګو ناستې او د چینائي وحشیانو د جنسي تیریو ښکار وي!

د ړنګو مسجدونو خاورو کې د قرآن ټوټه ټوټه آیاتونه د صلیبي وحشیانو په بمباردونو کې پراته وي!

اوس په فلسطین، برما او... وړې ماشومان وچې شونډې لالهانده او وړې ژوندون کوي چې تر مخ یې پلرونه شهیدان او ژوندي سوځول شوي!

ای د طالبانو مشرانو ای د امت خائنانو! تاسو له الله څخه نه ویریږئ په هغه سخته ورځ؟ د خپل کوم کوم خیانت سپیناوی به کوئ او د کوم جرم د بخښنې غوښتنه به له قهار ذات نه په هغه ورځ کوئ په کومه چې له هر مهاله زیات غصه وي؟!

ای الله ته مونږ لداسې ګمراهی وساتې چې ملتونه له ځان سره ګمراه او د اور په لور دعوت کړي.

امارت ته په منسوبو خلکو مونږ غږ کوو چې د الله لپاره له همغه قهار ذات څخه حیاء وکړئ چې تاسو ډیره مکاره تګلاره غوره کړې، له الله وویریږئ چې دا ستاسي مشران ستاسو دښمنان دي، او په الله قسم چې تاسو له الله سره د دښمني په لور دعوت کوي، دا دروغجن دي او تاسو غولوي او خپلو شومو اهدافو لپاره مو قربانوي، او همداسې به مو د اسلام او مسلمانانو پرضد جنګوي او کفارو سره به مو دوستان کوي.

# اوسني طالبان او اسلامي امت سره ظلمونه

هرکله چې هر تنظيم او ډله د کفارو په لاس کې ښکېل شوې ده، نو کفارو له هغه ډلې نه د اسلام او مسلمانانو پرضد ډېره لويه ناوړه استفاده کړې، او مسلمانان او اسلامي امت يې پرې ځپلی او وژلی دی، چې تېر تاريخ ددې پېښو گواه دی، اوس دور کې امارت تنظيم لاندې نوي نسل طالبان چې کفارو سره يو شوي دي، نو د اسلام په جامه کې يې هغه ظلمونه له اسلامي امت سره وکړل، چې کتابونه کتابونه پرې ډکېږي، خو پخپلو همېشنيو دروغينو ادعاګانو يې بيا دا ظلمونه پټ او برعکس خلکو ته ښکاره کړي دي.

اوسني طالبانو په خپلو لاس لاندې ساحو کې ډېر بې گناه قتلونه وکړل، بې د قاضي او محکمې نه يې خلک ووژل شول، شخصي دښمنی يې وکړې، بې له کوم جرم نه عام مسلمانان يې وځورول، ويې تکول، ويې وهل، اسيران يې کړل او رنگارنگ ظلمونه يې پرې وکړل...

چې ددوی دا ظلمونه له هيڅ هغه چا پټ ندي چې ددوی په ساحو کې يې ژوند کړی وي.

دارنگه کله چې اسلامي خلافت اعلان شو نو د نړی له هر کونج نه ورسره بيعتونه وشول او اسلامي امت د يو روڼ او

ښایسته سهار په لیدلو د الله د دین حاکمولو او اسلامي شریعت لاندې د ژوند کولو لپاره ورته هجرتونه وکړل.

کله چې د بیعتونو دا لړۍ په خراسان کې پیل شوه، نو د امارت جنګیالیو لخوا تریخ غبرګون وښودل شو، او له مجاهدینو یې وغوښتل چې بیعت مات کړي، خو مجاهدینو د بیعت له ماتولو انکار وکړ، چې همدا وه د امارت د ظلمونو او تیریو لړۍ د اسلامي خلافت په مجاهدینو باندې، څو څو وار یې مختلفو ځایونو کې مجاهدین شهیدان کړل، تردې چې د اسلامي دولت خراسان ولایت مشرانو څو ځله قومي مشران او سپین ږیري دوی ته ولیږل، ترڅو شریعت ته کیني، خو دوی انکار وکړ، او ویلې چې یا تسلیم شئ یا به جنګ کوو ځکه دلته افغانستان کې غیر د امارت نه په ډله نه منو، مجاهدینو ورته وویلې چې شریعت ته کینو ګورو چې اسلام څه حکم کاوه همغه به عملي کوو، خو دوی نه منله او په وار وار یې د مجاهدینو پرضد اقدامات وکړل، مجاهدین مجبور شول له ځان نه دفاع په منظور دوی بیرته په شا وتمبوي، خو بیا همدې امارتي سفهاؤ خپل همیشني دریځ (دروغونو او تهمتونو) ته کار ووایه او دا شور یې جوړ کړ چې اسلامي خلافت مسلمانان وژني او ظلمونه کوي او...

ددوی دا مکرونه او ظلمونه همداسې جاري ول تردې چې په مامند سیمه کې یې ځو ځو وار له افغانستان حکومت سره په ګډ ائتلاف کې د مجاهدینو پرضد د جنګ ډګر ته راغلل، خو د الله تعالی په فضل مرګوني ګذارونو سره مخ شول، او الله رب العالمین خپل حقیقي لښکر ته فتح او برياء ورکړه.

دې وخت کې کومو ازبک مجاهدینو چې اسلامي دولت سره بیعت وکړ، او غوښتل یې چې دارالاسلام ته هجرت وکړي، نو په زابل ولایت کې یې د هغوی پرضد جنګونه شروع کړل، هغوی یې ډېر زیات وځورول، ډېر یې شهیدان کړل، څه یې اسیران کړل بیا یې ووژل، تردې چې ډېرې کونډې بیا خبلو وړو وړو بچو سره دارالاسلام ته هجرتونه وکړل، او اوس هم الحمدلله دلته د اسلامي شریعت سیوري لاندې د غربت او هجرت ژوند شپې او ورځې سبا کوي.

خو دا قتل عام او غټ ظلم یې بیا خپلو رسنیو کې برعکس خلکو ته وښوده او مختلف تهمتونه او بهتانونه یې وتړل، چې دوی ته په تورو ښېښو موټرو کې اکمالات راتلل او...

خو الله رب العالمین د هرڅه ګواه او حساب کوونکی دی.

پـدې اواخـرو کـې درزاب جوزجـان کـې د اسـلامي خلافـت مهاجرين او انصار مجاهدين چـې مياشـتې مياشـتې د کفـارو، شيعه ګانو او طالبانو په ګډ ائتلاف کې محاصره شـوي ول، او د کفارو لخوا پرلپسې بمباردونو کې راګير شوي ول، نـو بـالاخرة د اسلحې او خـوراک د ختميـدلو لـه وجـې نـه اسـير شـول، څـه د افغانستان حکومت مرتدينو پـه لاس او څـه د طالبـانو پـه لاس، [خو عجيبه دا چې بيا همـدې طالبـانو دا حالـت پـه دروغـو توجيـه کـړ او خلکو ته يې وويل چې د افغانستان حکومت دوی له مونږ نه خـلاص کـړل، او طيارو کې يې اوچت کړل حالانکه هغوی اسير شوي ول، او مرتـدينو پـه طيارو کې زندانونو تـه بوتلـل، او اوس هـم ددې مرتـد ظـالم حکومـت پـه جېلونو کې دي، والله المستعان].

په هر صورت کوم مجاهدين چې ددوی په لاس اسـيران شـول، نو څه يې په ډېره بې رحمۍ سره پـه شـهادت ورسـول، څـه يـې زندان ته واچول، خو د لوی اختر پـه ورځـو کـې يـې پـه سـپين سترګۍ د ډيموکراسۍ او بې دينۍ تطبيق کوونکي سيکولر عسکر چـې لـه سره تـر پښـو جـامې او وسـلې، خـوراک او څښـاک د امريکائي کفارو له لورې ورکول کيـږي او پـه مـلا محمـد عمـر مجاهــد يــې خــروج کــړی و، لــه بنــده آزاد کــړل!!

دوی د اسلامي دولت سپيڅلي مجاهـدين شـهيدانوي او د مرتـد او کافر ټاپې پرې لګوي، والعياذ بالله.

خـو د افغانسـتان، پاکسـتان، ايـران،او نـورو کفـري حکومتونـو نظامي ارگانونو(اردو، پوځ، سپېشل فورس، استخبارات او...) تـه مرتد نه وايي، او کله چې يې هم د افغانستان حکومـت نظـامي مرتدين اسيران کړي نو بېرته يـې پيسـو مقابـل کـې يـا همسـې خوشې کړي:




Search پیام افتاب - آزادی ۱۰عسکر اردو ملی ا

پیام آفتاب

**آزادی ۱۰عسکر اردو ملی از بند طالبان**

10 قوس 1387 ساعت 8:20

شبه نظامیان طالبان ۱۰ تن از ۲۵ عسکر اردو و پلیس افغانستان را که جمعه به اسارت گرفتند، با وساطت مردم محل آزاد کردند.

به گزارش خبرگزاری فارس ، مقامات ولایت "بادغیس" اعلام کردند که روز گذشته ۱۰ تن از عسکران اردو و پلیس افغانستان که در اسارت طالبان بودند، با وساطت مردم و ریش سفیدان این ولایت آزاد کردند و تلاش برای رهایی ۱۵ تن دیگر از آنان ادامه دارد.

دو شب قبل کاروانی از اردو افغانستان در ولایت بادغیس مورد حمله طالبان قرار گرفت که به گفته مقامات اردو افغانستان در این گروگان‌گیری ۱۵۰ تن از نیروهای طالبان در مسیر حرکت این کاروان کمین کرده بودند.

"قاری یوسف احمدی" سخنگوی طالبان در گفتگو با رسانه‌های افغانستان مدعی شده است که در این

دارنګه د افغانستان، پاکستان، ايران، مصرـ، سعودي او نور حکومتونه چې په ښکاره ارتداد کې دي، دوی ته کفري نه وايي، خو اسلامي دولت ته بيا د کفر پروژه او کفري وايي، والعياذ بالله.

پداسې حال کې چې ددې حکومتونو کفر او ارتداد دومره واضحه او ښکاره دی، چې هېڅ د شک ځای پکې ندی پاتې.

لازمه ده دلته د ډيموکراسی او د موجوده حکومتونو پـه اړه لـږ مفصلا خبرې وکړو:

## ډيموکراسي او ډيموکراټيک حکومتونه د شريعت په رڼا کې:

پدې عصر کې په اسلامي امت غربي کفارو داسې نظامونه د خپلو مرتدينو او غلامانو په مټ تپلي چې د اسلام هيڅ حکم او اصل ته پابندي نلري او ټول تمرکز يې د مؤمنانو پـه بې لارې کولو او دغه کفري نظامونو ته پـه ژمن کولو کې دی، ډيموکراسي او لادينيت په اتلسمه پيړۍ کې پداسې ډول په غرب کې راوزيږيد چې هلته د ظالمو عيسوي پاپانو له حاکميت څخه د هغه ځای ملتونه تنګ شوي و، پـه هغوی خروج وشو په ميليونونو انسانان پکې ووژل شول چې بالآخره د عيسويت لـه تحريف شوي دين څخه تنګ شوي خلک په پاپانو بريالي شول او حاکميتونه يې لاسونو ته ولويدل، دا چې دوی د عيسويت لـه

تحریف شوي دین او ددوی د پاپانو له خود ساخته او ظالمو قوانینو څخه چې پاپانو ورته معرفي کړی و، زړه توري شوي ول، او بل داسې قانون هم هلته موجود نه و چې دوی یې تر لاندې ژوند وکړي نو دوی د دیني احکامو او قوانینو خلاء د بې دینۍ یا د اکثریت په واک ډکه کړله، یعنې هغه څه چې اکثریت یا ډیر خلک ومني هماغه به زمونږ قانون او تګلاره وي لکه څرنګه چې ددغه کرغیړن نوي دین له نوم څخه روښانه ده چې [ډیمو] یعنې خلک او [کراسي] یعنې واک په مجموع کې (د خلکو واک یا د خلکو حاکمیت)، پدې نوي دین کې به هیڅ آسماني او الهي قوانین نه وي موجود، او یوازې هغه څه به شتون لري چې د اکثرو انسانانو د نفس د خواهشاتو په معیار برابر وي،
دغه کم عقله فیصله د انسانانو د خود ساخته دینونو ابتکار ده چې الله سبحانه وتعالی یې په اړه فرمایلي: وَإِن تُطِعْ أَكْثَرَ مَن فِي الْأَرْضِ يُضِلُّوكَ عَن سَبِيلِ اللَّهِ ۚ ....الانعام [۱۱۶]

ژباړه: (ای محمده) که چیرې د ځمکې پر مخ له ډیرو خلکو پیروي وکړې نو تا به د الله له لارې ګمراه کړي، (ځکه) هغوی یوازې له (خپل) ګومان څخه پیروي کوي.

دوی له دین څخه بیزاره او داسې بل دین یې پخپله جوړ کړ چې خپل ټول ژوند، حاکمیت، معیشت او کاروبار یې پخپلو خود ساخته قوانینو کې راونغاړل چې پدې توګه په نړۍ کې د بې دینانو حاکمیت پیل شو، هر هغه ځای کې چې جمهوریت او ټاکنې موجودې وي هغه ځای ته ډیموکراټیک یا بې دینه ویلی شو، چې په شریعت کې همدغې سیمې ته دارالکفر ویل کیږي.[41]

کله چې یوه سیمه ډیموکراټیکه شي نو وګړي یې مجبور دي چې د بې دینۍ قوانین ومني، یعنې داسې قوانین چې په دین به نه وي استوار، بلکې په سیکولریزم به تکیه وي، د خلکو د نفس د خواهشاتو په معیار به برابر وي او اکثرو خلکو به رأیه ورکړي وي، خو که چېرې په کوم اساسي قانون کې کومه ماده له اسلام سره اړخ ولګوي نو دا پدې معنی نشوه چې دوی د اسلام له وجې دغه ماده دیني کړه بلکې ددې دوه صورتونه دي: یو صورت یې دادی چې دا به د انسانیت په فطرت ولاړه ماده وي مثلاً: هیڅوک نشي کولی چې بل چاته شکنځلې وکړي، دوهم صورت یې دادی چې په هغې سیمې به ډیموکراسي نوې حاکمه شوې وي لکه افغانستان؛ چې د خلکو د راپاریدو د مخنیوي لپاره په شیطاني انداز بعضې مادې فعلا اسلامي منل

[41] د دارالکفر او دارالاسلام موضوع هم مهمه او حساسه موضوع ده، چې مستقل کتابونه پرې لیکل شوي دي

شوي دي، خو دا به په کرار کرار پداسې وخت کې بیرته غیر اسلامي او سیکولر شي چې کله د خلکو اذهان په پوره ډول منحرف او دومره غیرت پکې پاتې نشي- چې راپورته شي او ووايي چې ولې؟!

نو کله چې حاکمیت، پادشاهی، حکم او قانون غیرالله لره شي نو پدې اړه بیا الله سبحانه وتعالی فرمايلي چې: وَمَن لَّمْ يَحْكُم بِمَا أَنزَلَ اللَّهُ فَأُولَٰئِكَ هُمُ الْكَافِرُونَ [المائدة: ٤٤] ژباړه: هر هغه څوک چې د الله له قانون څخه په بل قانون فیصله وکړي نو بیشکه چې کافران دي.

دا چې پدې نظامونو کې خلکو خپل ارتداد ته د روزي ګټلو، د وطن ساتنه، د خاورې دفاع یا نور نومونه ورکړي او لدې نظام او حاکمیت څخه په عسکري او نظامي بڼه دفاع کوي دوی د ایمان په څو نواقضو کې مبتلاء شوي چې دغه نواقض او د عسکرو دغه ارتداد به ان شاءالله تعالی تاسو ته د قرآن، سنتو او صحابه کرامو له سیرت څخه بیان کړو او په آخر کې به هغه حکم هم بیان شي چې لدې مرتدینو سره باید څه ډول معامله وشي، آیا ددوی ژوندي پریښودل او آزادول جواز لري او که نه؟

د ډیموکراټیکو نظامونو د نظامیانو د ایمان نواقض:

۱- د حکم بغیر ما انزل الله (د الله له قانون نه ماسواء قوانین) د تحکیم په لاره کې جګړې کول.

۲- د شرعي احکامو مانعین.

۳- له کفارو نه د مسلمانانو په مقابل کې مرسته تر لاسه کول.

۴- د نړیوال دجالي کفر یعنې ډیموکراسي او سیکولریزم تطبیق او پیروي.

پورته ذکر شوي هغه عمده نواقض دي چې د ډیموکراټیکو کفري جمهوریتونو نافذین پرې مرتد شوي او دوی یې له ایمان او اسلام څخه خارج کړي دي، ددغو نواقضو شرح به ان شاءالله تعالی په لاندې ډول ذکر کړو:

### ۱- حکم بغیر ما انزل الله:

هر هغه حاکمیت او هر هغه قانون چې د الله عزوجل له قانون سره مخالفت ولري هغه بې له شکه غیر اسلامی او کفري قانون دی،

که یو څوک ددې دعوه وکړي چې زه د فلان پادشاه پادشاهی

منم خو قوانين يې نه منم يا يې پـه قوانينـو عمـل نکـوم او پـه ځای يې زه د خپلې خوښې قوانين ځان ته جوړوم، نـو پـه کـوم دليـل دغـه کـس ددې پادشـاه حاکميـت او پادشـاهي ومنلـه؟!

په همدې ډول دغه مرتدين هم په اصل حقيقـت کـې د نړيوالـو کفري ملتونو قوانين او مقررات مني خو کله له شرک ځخـه ډکې سجدې بيا الله ته کوي او د الله د پادشاهي د منلو دعـوې هم کوي؟! خو دوی د خپل کفر لپاره دير پسـت، ټيـټ، غـلام او ذليل دلايل لري او ددوی حقيقت د يوه مـؤمن لـه سـترګو هـيڅ نشي پټيدلای چې هغه يوازې کفر او ارتداد دی او بس!

دا چې پادشاهي او غرور يوازې الله لـره دی نـو پـدې اړه اللـه سبحانه وتعالی د خپل مبارک کلام په څو ځايو کې فرمايلي:

ذَٰلِكُمُ اللهُ رَبُّكُمْ لَهُ الْمُلْكُ ۖ لَا إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ ۖ فَأَنَّىٰ تُصْرَفُونَ [٦ الزمر] ژبـاړه: دغه ستاسو رب دی، ستاسـو رب چـې پادشـاهي(حکومت) هغـه لره ده، بې له هغه هيڅ معبـود نشـته نـو ځرنګـه لـه حقـې لارې کاږه کيدلی شي؟!

په بل ځای کې الله سـبحانه وتعـالی فرمـايي: قُلْ يَا أَيُّهَا النَّاسُ إِنِّي رَسُولُ اللهِ إِلَيْكُمْ جَمِيعًا الَّذِي لَهُ مُلْكُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ ۖ لَا إِلَٰهَ إِلَّا هُـوَ يُحْيِي وَيُمِيتُ ۖ ..... [ اعراف ١٥٨]  ژبـاړه: ووايـه: ای خلکـو! زه د اللـه

سبحانه وتعالی له لورې تاسو ته راستولی شوی یم، هغه الله چې د ځمکې او آسمانونو پادشاهي هغه لره ده، بې له هغه بل معبود نشته، ژوندي کول او مړه کول کوي.

په بل ځای کې الله سبحانه وتعالی فرمايلي: يَغْفِرُ لِمَن يَشَاءُ وَيُعَذِّبُ مَن يَشَاءُ ۚ وَلِلَّهِ مُلْكُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَمَا بَيْنَهُمَا ۖ وَإِلَيْهِ الْمَصِيرُ [۱۸ المائده]

ژباړه: هر هغه چا ته چې وغواړي (لايق يې وبولي) بخښنه کوي، او هر چاته چې وغواړي (مستحق يې وبولي) مجازات ورکوي او د ځمکې او آسمانونو او هر هغه څه چې ددې په منځ کې دي، پادشاهي هغه لره ده. او د ټولو موجوداتو بيرته تګ د همغه په لور ده.

خو دغه بې دينان او ډيموکراټان پدې ځمکې د الله فيصلې او د هغه قانون نه مني بلکې الله يوازې د آسمانونو پادشاه بولي العياذبالله، که چيرې دوی الله د ځمکې پادشاه هم بللی نو د هغه حکم او قانون به يې هم منلی و، او د هغه د حکم او قانون په نفاذ کې به يې خپلې وينې بهولی خو افسوس افسوس چې دوی سجدې د آسمانونو رب ته کوي او خپلې وينې بيا د ځمکې فرعونيانو ته بهوي، تاسو ووايئ ای مؤمنانو چې دوی په کوم دليل د الله سبحانه وتعالی پادشاهي او خدايي منلې پدې

نړۍ کې؟! بلکې دوی خپله د خدائي دعوی کړې، دغې ځمکې ته دوی پخپلې خوښې قوانین جوړوي او دوی خپل حاکمیت او خپله خود سري پادشاهي پدې ځمکي نافذول غواړي چې ددوی لدې کرغیړنو اعمالو مونږ د دجال بوی محسوسوو، او پناه غواړو له دې دجالي فتنو، شرک او د قبر له عذاب څخه.

پدې اړه په بل ځای کې الله تعالی فرمایلي: إِنَّا أَنزَلْنَا التَّوْرَاةَ فِيهَا هُدًى وَنُورٌ ۚ يَحْكُمُ بِهَا النَّبِيُّونَ الَّذِينَ أَسْلَمُوا لِلَّذِينَ هَادُوا وَالرَّبَّانِيُّونَ وَالْأَحْبَارُ بِمَا اسْتُحْفِظُوا مِن كِتَابِ اللَّهِ وَكَانُوا عَلَيْهِ شُهَدَاءَ ۚ فَلَا تَخْشَوُا النَّاسَ وَاخْشَوْنِ وَلَا تَشْتَرُوا بِآيَاتِي ثَمَنًا قَلِيلًا ۚ وَمَن لَّمْ يَحْكُم بِمَا أَنزَلَ اللَّهُ فَأُولَٰئِكَ هُمُ الْكَافِرُونَ

ژباړه: مونږ تورات نازل کړ پداسې حال کې چې په هغه کې نور او هدایت و، پیغمبران چې د الله سبحانه وتعالی حکم ته تسلیم ول یهودو ته به یې حکم پرې کاوه او (همدارنګه) علماؤ او پوهو خلکو چې دغه کتاب ورته سپارلی شوی و. او پرې شاهد ول حکم (فیصلې) یې پرې کولې، له همدې امله (د الهي آیتونو پر اساس له فیصلې کولو) له خلکو مه ویریږئ! بلکې له ما وویریږئ! زما آیتونه په تیټ قیمت مه پلورئ! او هغه خلک چې په هغه حکم (قانون) فیصلې نکوي چې الله نازل کړی نو کافران دي.

سبحان الله! مهربان ذات څومره په واضحه مونږ پداسې قوانینو له فیصلې کولو منع کړي یو چې هغه د الله له نازل کړل شوي قانون سره اختلاف ولري، او څومره رحمان او رحیم ذات دی چې د عبرت لپاره یې مونږ ته د تیرو قومونو کیسې هم کړي، خو چیري دي اوریدونکي غوږونه او چیري دي لیدونکې سترګې، نن به څوک خپل دین ته مراجعه وکړي چې زمونږ قانون، حکومت او فیصلې باید په څه ډول وي؟! الله الله ای امته! له الله څخه وویریږئ او خپل اخروي ژوند مو پدې بې ارزښته ژوند مه خرابوئ، خپل دین ته مراجعه وکړئ او خپل دین وپیژنئ، هسې نه چې د هلاکت لویو لویو کندو ته د تل لپاره ګوزار شئ، نعوذبالله...

نو د همدې فرعونیت او خپل سري پادشاهیو د نفاذ او د الله له قانون څخه بغیر په بل قانون ددوی فیصلو کولو ته شرک او کفر ویلی شوی چې د نننی مرتد حکومت نافذین پکې شامل دي.

## ۲- ډیموکراټیک نظامونه د شرعي احکامو مانعین دي:

هغه موضوع چې پدې عصر کې یې د ډیرو خلکو ذهنونه مشوش کړي او اکثره یې د ګمراهۍ په ګرداب کې لاهو کړي هغه موضوع له نننی ډیموکراټیکو نظامونو او حکامو څخه

پیروي او اطاعت کول دي چې آیا ددوی قوانین، فیصلې او پادشـــــاهي بایـــــد ومنـــــل شي او کـــــه نـــــه؟! بې له شکه چې نه! ځکه هغه کفر چې دوی پدې ځمکې خپروي بې له فرعوني کفر څخه بل څه نشي کیدلی، دوی پداسې ډول د خدایۍ دعوی کړې چې د فرعون کفر نه هم غټ کفر دی، دوی ځانونه ددغې ځمکې مالکان بولي او دوی هیچا ته هم حق نه ورکوي چې بې له ډیموکراسۍ پدې ځمکې د بل چا قانون حاکم شي، دوی ددغې ځمکې له حقیقي مالک او رب څخه هم ددغې ځمکې د پادشاهۍ حق اخیستل غواړي والعیاذبالله، او اوس پخپلو خود ساخته، ناقصو او بې عقله قوانینو غواړي چې دغه ځمکه اداره کړي، فرعون خو یوازې د مصر خلک خپل عبادت ته رابلل خو دغه ډیموکراټیک مدعیان غواړي چې په ټوله نړۍ خپل حاکمیتونه وچلوي او د ځمکې په هرې لویشتې باید جمهوریت، ډیموکراسی او خودساخته قوانین حـــــــــــــــــــــــــــــاکم وي، ډیموکراټیک او جمهوري کفري نظامونه بې له شکه د شریعت د نافذولو په مخ کې خنډ ګرځیدلی، بلکې منع یې کوي، دغه موضوع ډیره مهمه او حیاتي موضوع ده.

رسول اللهﷺ فرمایلي: زه له قیامت څخه مخکې له تورې سره رالیږلی شوی یم، تر څو د یوازې الله تعالی بې شرکه عبادت وشي او زما روزي زما د تورې په سیوري کې ده، زما په مخالفینو

خواري او ذلت مقرر شوی او هر هغه څوک چې لـه کـوم قـوم سره ځان مشابه کړي د هغوی له جملې به حسابيږي. [42]

دا چې قتال او جهاد د اسلامي بيرغ د اوچتـوالي (وَكَلِمَةُ اللَّهِ هِيَ الْعُلْيَا ۗ [ التوبة ٤٠] لپاره الله سبحانه وتعالی په مونږ فرض کـړی نو ددې قتال اصلي هدف د الله د شريعت تحکيمول، قـوانين او فيصـلې تـولې اللـه لـره کـول او د همغـه ذات د پادشـاهۍ پـه قوانينـو دولـت او نظـام جـوړول دي، چـې دغـه اصـل تـه پـه ډيموکراټيکو نظامونو کې هيڅ ځای ندی ورکړل شوی، بلکې هر څوک چې د الهي شريعت د پياده کولـو لپـاره د قتـال في سـبيل الله هوډ ولري نو په جمهوري نظامونو کې به د هغه کس انجام ډير خراب وي، دا چې د الله د لارښوونو مطابق د الهي شريعت نافذول د قتال لـه لارې او د ولاء او بـراء پـه اسـاس ددوی پـه قوانينـو کـې ارهـاب، تـرور او وحشـت بلـل کيـږي، د جمهـوري نظامونو په بين المللي قوانينو کې دغـه خـبره پـه ډيـره واضـحه الفاظو راغلې چې هر هغه څوک چې ارهاب او تـرور (قتـال او جهاد) وکړي نو حکم يې اعدام، قتل او يـا ابـدي زنـدان دی او افسوس چې اوسني طالبان د همدې بين المللـي دجـالي قوانينـو وډي او تږي شپه او ورځ همدا زارۍ کوي چې مـونږ تـه پخپـل صف کې يوه خاليګاه راکړئ چې ډکه يې کړو، خو دغه کفار بـه

[42] صحيح: رواه احمد فی المسند برقم (۴۹۴۴) و (۴۵۸۹) عن عبدالله بن عمر بن الخطاب القرشی، و رواه الطبرانی فی مسند الشاميين برقم (۱۲۱۱)،

تر هغو له دوی راضي نشي او دوی ته به په بین الملل کې ځوکۍ ورنکړي تر هغو چې دوی په مکمله توګه ددوی قانون نه وي منلی، ځکه الله تعالی داسې فرمایلي:

وَلَن تَرْضَىٰ عَنكَ الْيَهُودُ وَلَا النَّصَارَىٰ حَتَّىٰ تَتَّبِعَ مِلَّتَهُمْ [البقرة: ١٢٠] ژباړه: هیڅکله به له تاسو یهود او نصارا راضي نشي تر هغو چې تاسو ددوی دین نه وي منلی!

طالبان، امریکا او روس به هیڅکله توافق ته ونه رسیږي مګر دا چې دوی یو له بله راضي نشي چې دا رضا د طالبانو په کفر، کفارو ته حاصلیږي.

ددغو ډیموکراټیکو او جمهوري کفري حاکمیتونو د حاکمیت لاندې که چیرې په منبر له قرآن څخه د قتال في سبیل الله یو دوه آیتونه تلاوت کړې او خلک جهاد او قتال ته دعوت کړې نو ملتونه یې د شیطاني میډیا په مټ داسې تربیه کړي چې فورا به له جیبه تلیفون راوباسي او وحشي۔ استخباراتو ته به زنګ ووهي چې راشئ دلته مې خوارج کشف کړی!، پدې ډول به دغه مؤحد او غریب د هغو جلادانو لاس ته ولویږي چې په برقي ځوکۍ او ارو به یې ساه ترې وباسي، او په پوره ظلم او وحشت به یې په شهادت ورسوي، بلکې په ګرمو سیخانو به یې تعذیب او وسوځوي تر څو دده له لارې نور غرباء او مؤحدین هم کشف کړای شي.

دا چې دغه سيکولر او ډيموکراټيک نظامونه له شريعت څخه مانع او د نفاذ په مخ کې يې خنډ او مانعين ګرځيدلي نو الله سبحانه وتعالی يې په اړه داسې فرمايلي: فَلَا وَرَبِّكَ لَا يُؤْمِنُونَ حَتَّىٰ يُحَكِّمُوكَ فِيمَا شَجَرَ بَيْنَهُمْ ثُمَّ لَا يَجِدُوا فِي أَنفُسِهِمْ حَرَجًا مِّمَّا قَضَيْتَ وَيُسَلِّمُوا تَسْلِيمًا [النساء: ٦٥]

ژباړه: **نه!** ستا په رب قسم چې هغوی به ايمان نه راوړي مګر دا چې پخپلو اختلافونو کې تا(ای د الله رسوله) قاضي ونه ټاکي او بيا ستا له منځګريتوبه پخپلو زړونو کې ناراحتي ونکړي او په مکمل ډول تسليم شي.

خو ددې عصر دجالي کفارو کفر پداسې ډول منلی او مرتد شوي چې په خوله اقرار کوي چې مونږ دا هر څه منو خو خلک يې غولولي او ددوی د قانون په هيڅ ماده کې الله او رسول ته تسليمي نده پکې ښودل شوې او بې غمه خپل کفري حاکميت په خلکو تر سره کوي، خو ای خلکو د الله سبحانه وتعالی په پورته مبارک آيت کې دې ټکي ته توجه وکړئ (وَيُسَلِّمُوا تَسْلِيمًا) دا چې دوی په مکمله بڼه ځانونه تسليم نکړي يعنې پخپلو اعمالو کې دا تري څرګنده نشي او د خپل نظام او حاکميت له لارې يې په خلکو عملي نکړي نو دوی هيڅکله د رسول الله ﷺ منځګړيتوب ندی منلی، بلکې ددوی اقرار يوازې د هغه ظاهري شرم د پټولو لپاره دی چې په جامعه کې بيا د کافر په نوم ونه پيژندلی شي

بلکې ددوی ټول اعمال او قوانین د رسول اللهﷺ له منځګړیتوب سره مخالفت لري او دوی د الله تعالی د قوانینو په ځای د خپلو جاهلو قوانینو لپاره وینې بهوي او په هلاکت رسیږي.
امام حصاص ددې آیت په تفسیر کې وایي: دغه آیت پدې دلیل دی چې هر هغه څوک چې د الله سبحانه وتعالی یا د رسول اللهﷺ فرمانونه رد یا قبول نکړي نو له اسلامه خارج او مرتد شوی، که یې د شک او ګومان له پلوه رد کړی وي، یا یې د نه قبلولو یا نه تسلیمیدو له امله، د الله تبارک وتعالی دغه کلام د صحابه کرامو د هغې فیصلې تصحیح هم کوي چې نور مرتدین د زکات مانعین ګرځیدلي و او بیا د ارتداد حکم پرې شوی و.
اوس د الله تعالی کتاب او د رسول اللهﷺ احادیث موجود دي، نو مسلمانان باید ټولې فیصلې پدې وکړي، قوانین یې همدا وي.
خو ای امته! دغو ډیموکراټیکو نظامونو چیرې او په کومه فیصله کې الله تعالی او رسولﷺ خپل منځګړي ټاکلي، راوښایئ ددوی په قانون کې چې فیصلې د الله تعالی او رسول اللهﷺ د ارشاداتو په رڼا کې شوي وي او راوښایئ چې دوی دې منع نه وي ترې کړی؟!
هو پداسې ډول د شریعت د نفاذ مانع کوونکي دي چې ساري یې نه په تاتاریانو کې لیدل شوي او نه د صحابه کرامو پر

مهال د زکات پر مانعینو، ځکه د ابوبکر صدیقﷺ پر مهال هغه مرتدین یوازې د زکات مانعین ول، پداسې ډول چې لمونځونه یې کول، شهادتین یې لوسته، روژې یې نیولې او حجونه یې کول حتی ددوی په منځ کې داسې خلک هم موجود و چې د زکات فریضه یې هم منله خو دا به یې ویل چې مونږ یې خلافت ته له ورکولو ډډه کوو او د منکرینو په صف کې ولاړ ول! چې بیا صحابه کرامو رضي الله عنهم په اجماع سره له دوی سره قتال واجب وګرځاوه او دوی یې مرتد وبلل، خو راشئ دغو ډیموکراټیکو نظامونو ته چې په کومه کچه د شریعت د نفاذ مانعین دي او آیا دوی سل په سله ټول دیني احکام ندي تعطیل کړي؟! نو څنګه دوی نشول مرتدین ای طالبانو چې تاسو اوس هم دوی ته یوازې اجیر او مزدور وایئ؟!

له شیخ الاسلام ابن تیمیه رحمه الله څخه هغه مهال له تاتاریانو سره د قتال في سبیل الله په اړه سوال وشو چې سره لدې چې هغوی شهادتین وایي او دعوه یې هم دا ده چې دوی د اسلام پیروان دي نو نوموړي وفرمایل: هره ډله او طائفه چې له اسلامي شعائرو او التزام څخه منع وکړي نو لدې قوم (تاتار) یا له نورو داسې قومونو سره جنګ او قتال تر هغو پورې واجب دی تر څو چې اسلامي احکامو او شعائرو ته پوره التزام او پابندي نه وي شوي، اګر که شهادتین هم ووایي او یا بعضې د داسې شعائرو التزام هم ولري لکه لمونځ، لکه څرنګه چې ابوبکر

صديقﷺ له هغو سره قتال شروع كړ چا چې زكات نه اداء كـاوه چې له همدې امله وروستي فقهاء متفق شول چې هره طائفه او قوم چې له زكات، لمونځ، روژې، حج يا له كفارو سره د جهـاد او قتال د فريضې مانعين وگرځي نو لدې ممتنعه طائفې سره بايـد قتال او وژنه ترسره شي اگر كه پدې شـعائرو اقـرار هـم ولـري (خو دا چې ورته تسليم شوي ندي او په عمل كې يې نه ښـكاري او حتى ممانعت يې هم كوي نو بـواح او واضـح كفـر او ارتـداد ورته ويلى شو) او دا داسې موضوع ده چـې فكـر نكـوم چـې د علماؤ تر منځ يې په اړه كوم اخـتلاف هـم موجـود وي (ځكـه د صحابه كرامـوﷺ آثـار پـدې اړه واضـح او روښـانه دي) او دغـه خلك د علماؤ په نزد بې له (البغاة) او سركشانو بـل ځـوك نـدي بلكې دوى له اسلام څخه خارج شوي او كافر شوي دي.[43]

شيخ الاسلام بيا فرمايي: هره ډلـه او جماعـت چـې د شريعـت ښكاره او متواترو احكامو ممتنع وي او پاپند يې نه وي، قتـل او وژل يې واجب دي يعنې واجبه ده چې لـه هغـوى سره جنـگ او قتال وشي تر هغو چې په اسلام په بشپړه توگه منگـولې ولگـوي او اسلامي شرائعو ته پابند شي لكه څرنگه چې ابوبكر صديق ﷺ له هغه چا سره جنگ او قتال وكړ چا چـې زكـات نـه وركـاوه، د ابوبكر صديق او عمر فاروقﷺ له گفتگو او بحث څخـه وروسـته

[43] مجموعة الفتاوى لشيخ الاسلام ابن تيمية رحمه الله (ج٢٨/ص ٢٩٥ – ٢٩٦)

ټولو فقهاؤ او علماؤ په همدې اتفاق کړی، ټول صحابه کرامﷺ په قرآن او سنتو باندې په عمل کولو اتفاق کړی د اسلام پر حقوقو او په هغې د قتال کولو! پدې باید پوه شئ چې یوازې د اسلام نوم چې شعائرو ته پکې پابندي نه وي د قتال مانع نه ګرځي قتال واجب وي تر هغو چې ټول دین الله لره نه وي شوی او هیڅ فتنه باقي پاتې نشي، تر هغو چې دین غیر له الله څخه وي قتال هم واجب ده، هره ډله او طائفه چې د خلکو له لمونځونو، روژې یا حج څخه ممانعت وکړي یا په حرامه د وینو بهول حرام ونه بولي، د خلکو د مال خوړل، شراب، قمار، له محارمو سره واده کول یا له کفارو سره قتال او جګړې حرمت ته پابند او ملتزم نه وي، یا له اهل کتابو او نور کفارو څخه جزیې اخیستلو ته یا د دین نورو واجباتو ته پابند نه وي له هغوی سره به قتال کیږي اګر که باور هم پرې ولري او اقرار پرې وکړي (یعنې حلالو ته یې حرام او حرامو ته یې حلال هم نه وي ویلی) او فکر نکوم چې پدې اړه د علماؤ تر منځ کوم اختلاف هم وجود ولري، هغه څوک چې له شرعي احکامو منع کوي په اړه یې امام القاضي ابویعلي [رحمه الله] د صحابه کرامو ﷺ اجماع نقل کړې چې دا د صحابه کرامو ﷺ اجماع ده چې هغوی د زکات مانعینو ته د کفر نسبت وکړ له هغوی سره وجنګیدل او د ارتداد حکم یې پرې وکړ.

### ۳- له کفارو نه د مسلمانانو په مقابل کې مرسته تر لاسه کول:

هر هغه څوک چې د مسلمانانو په مقابل کې له کفارو مرسته تر لاسه کړي، د مسلمانانو له صفه بيل او ددوی په مقابل کې له کفارو سره ودريږي نو د امت په اجماع سره هغه مرتد او له دين څخه خارج شوی دی، اگر که شهادتين هم ووايي، لمونځونه وکړي او روژې هم ونيسي.

الله تعالى فرمايلي: ﴿وَمَن يَتَوَلَّهُم مِّنكُمْ فَإِنَّهُ مِنْهُمْ إِنَّ اللَّهَ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الظَّالِمِينَ﴾ [المائدة: ٥١]

ژباړه: او هر هغه څوک چې له هغوی (کفارو) سره موالات (دوستي) ولري نو هغه ددوی له جملې حسابيږي، بيشکه چې الله سبحانه وتعالى ظالمانو ته هدايت نکوي.

له کفارو او مشرکينو سره د مسلمانانو په مقابل کې مرسته کول داسې يوه عظيمه فتنه ده چې نن يې ډير زيات عموميت پيدا کړی، دا په اسلامي امت داسې يو وَرَوَل شوی غشی دی چې مسلمانان يې هم ړانده کړي هم يې کانه کړي، ددې لوی جهالت عمده علت ددوی د اسلامي علم نه شتون دی، مسلمانان نن د يوناني کفارو په فلسفو افتخار کوي تول ژوند يوازې د يوه کسب په زده کړې تيروي او هغه هم د همدې

کفارو د تعاون لپاره او خپلو ځانو ته د مرداري روزۍ د ګټلو لپاره.

له علامه عبدالله بن عبدالطيف رحمه الله څخه له کفارو سره د موالاتو په اړه سوال وشو نو هغه ځواب ورکړ چې: ((تولی) یا له کفارو سره موالات او دوستي کفر ده، داسې چې انسان له دين څخه خارجوي، له هغوی څخه دفاع او له هغوی سره په مال، ځان، ژبی او فکر مرسته کول تولی بلل کيږي).

که چيرې مسلمانان ټول يو لاس او واحد صف ولري او هغه قربانۍ، زحمتونه او سختيانې چې دوی يې د کفري نظام د حاکميت او د امريکې په تجهيزاتو تر سره کوي دا زحمتونه يې يوازې په تش لاس د اسلامي نظام د حاکميت او د مسلمانانو له صف سره کړی وای، نو تاسو فکر وکړئ چې دغه صف به اوس د کوم مقام خاوند و؟! نو ای بې خبرو پوه شئ چې له کفارو سره په ژبه، مال او ځان سره مرستې او کومکونه کول بواح او معلوم کفر دی، چې د مسلمان د ارتداد سبب ګرځي.

د پورته مبارک آيت په رڼا کې، هغو مرتدو او جاهلو خلکو چې افغانستان ته د امريکې له راتګ سره سم د ملا محمد عمر مجاهد او اسامه بن لادن په مقابل کې له دوی سره لاسونه يو کړل، له امريکايانو يې وسلې تر لاسه کړې او د مسلمانانو په

مقابل کې وجنګیدل نو معلومه شوه چې دوی په ډیره سپین سترګی د خپل کفر او ارتداد اعلان وکړ او له دین څخه یې ځانونه خارج کړل.

د دوهم نسل طالبانو ته د اول نسل د طالبانو د کفر ځېونکي مبلغ استاد یاسر رحمه الله یو څو خبرې وریادوو چې هغه علماؤ ته په یوه بیان کې فرمایلي: (د روسانو جنګ په مونږ کې شهیدان زیات کړل خو د امریکې جنګ په مونږ کې کافران (مرتدین) زیات کړل له عقیدې څخه پرې ووتل او کاش چې شهیدان زیات شوي وای لکه مخکې وختونه، مرتدان مو زیات شول او کافران مو زیات شول، په تلویزیونو او راډیوګانو کې خلک ناست دي او ټول د کفر الفاظ دي چې غږوي یې، په حالت اکراه کې هم ندي دغه خلک خو پرې کافران شول او شک راته پیدا شو چې هسې نه سړیه تا به مسئلې سمې نه وي زده کړې په ځان وډار شوم چې له ما سره د تکفیر عقیده نه وي پیدا شوي ته به تکفیري شوی وې، او خلک به (په ناحقه) تکفیروې، شک راته پیدا شو او ورغلم پیښور کې یو سپین ږیری عالم و چې په قرآن ښه پوهیده چې دا خپل علم ورته تیر کړم او تصحیح یې کړم، له جیل څخه دوه درې کاله مخکې خبره وه شیخ عبدالسلام صاحب ته ورغلم چې ای شیخه زه تاسو ته د خپل استاذ په سترګه ګورم ماته یوه شبهه پیدا شوې چې دغه

علماء چې د امریکایانو تائید کوي او د مجاهدینو خلاف کوي او د کفر لاوډسپیکرې گرځیدلي، د حکومتونو دا علماء په حالت اکراه کې ندي نو دا ددې آیت مصداق گرځي چې: إِلَّا مَنْ أُكْرِهَ وَقَلْبُهُ مُطْمَئِنٌّ بِالْإِيمَانِ [النحل: ١٠٦] ژباړه: (بې له هغو چې د فشار لاندې واقع شوي پداسې حال کې چې زړونه یې آرام او په ایمان مطمئن وي)، دا خو ددې آیت مصداق نه گرځي ځکه دوی خو په حالت د اکراه کې ندي نو چې د اکراه په حالت کې ندي او دوی د کفر الفاظ وایي نو دوی خو پرې کافران کیږي، شیخه پدې کې څه وایې؟! نو ماته یې وویل چې شیخ یاسره دا ددې آیت مصداق ندي او ددې آیت مصداق دي: إِنَّ الَّذِينَ يَشْتَرُونَ بِعَهْدِ اللَّهِ وَأَيْمَانِهِمْ ثَمَنًا قَلِيلًا أُولَٰئِكَ لَا خَلَاقَ لَهُمْ فِي الْآخِرَةِ وَلَا يُكَلِّمُهُمُ اللَّهُ وَلَا يَنظُرُ إِلَيْهِمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَلَا يُزَكِّيهِمْ وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ [آل‌عمران: ٧٧] پنځه وعیده سر په سر چې دا ددې آیت مصداق دي، نو ما ورته وویل چې الله دې اجر درکا ځکه زه شکمن شوی وم چې زه د علماؤ په حق کې تجاوز ونکړم او د علماؤ په حصه کې بې ادبي ونکړم.

د استاد رحمه الله پدې ویناء کې نوموړی د بین الملل فیصلې هم تحاکم الی الطاغوت بللي او د ډیموکراتیکو نظامونو د تکفیر په اړه یې هم مفصل بحث کړی.

نو ای د دوهم نسل طالبانو! استاد یاسر چې ددغو نظامونو علماء تکفیر کړي ول نو آیا ددوی مرتد نظامیان چې له سره تر پښو د امریکې په وسلو سنبال دي، د کفر تحاکم غواړي او دا یې آرمان دی چې د وطنیت په چوکاټ کې باید دلته ډیموکراسي او جمهوریت حاکم شي، د الله پادشاهي نه مني او د هغه قوانین په ځمکه نافذول نه غواړي، څنګه تاسو مرتد نه بولئ او څنګه د یوه مرتد تعامل نه ورسره کوئ، چې ژوندي یې خوشې کوئ؟! همدې استاد د همدې بیان په اوږدو کې د همدوی په اړه فرمایلي چې ددوی توبه عندالقاضي نه قبلیږي (او باید ووژل شي) بلکې توبه یې یوازې عندالله قبلیږي.

په هرصورت پورته ذکر شوي هغه روښانه دلایل و چې د قرآن، سنتو او صحابه کرامو له اجماع څخه د شریعت لدغو مانعینو بلکې ډیموکراټیکو او بغیر ما انزل الله د قوانینو د جاري کوونکو د ارتداد لپاره بیان شول، په سلګونو نور دلایل هم شته او موجود دي خو ددی لپاره چې دلته زمونږ د بحث موضوع په اوسني طالبانو ده، نو یوازې په پورته ذکر شویو پریکنده دلایلو اکتفاء کوو، ترڅو طالبان او ټول خلک وپوهیږي چې د افغانستان نظام، پاکستان نظام او نور موجوده حکومتونو نظامونه اسلامي نه بلکې کفري نظامونه دي، اګرکه خلک یې مسلمانان دي.

